# حرّګ


# په افغانستان کې

## امريکايي جاسوسان څومره او کوم دي؟!!


ديارلسم کال، پنځمه، پرلپسې ۹۴مه ګڼه، سرطان۱۳۹۵ل، شوال المکرم ۱۴۳۷هق، جولای۲۰۱۶م




لویه دوره یا دورة الحدیث څنګه او چیرې وکړم؟

- ناتو! بيا دځه لپاره راځي؟
- پنځه مليارده ډالر!!
- آنچه که رسانه ها به آن نپرداخته اند
- مفسده اداره او ولسي قضاوت !!!
- دأميرالمؤمنين شهادت او د امريکا نامعقول وحشي دريځ

## څوک دافغانستان دجګړې کتونکي!

## طالبان که اشغالګر؟!









## د کابل له وژل شويو عسکرو سره خواخوږي...!!؟






**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**

دریالسم کال، پنځمه، پرلپسې ۹٤مه ګڼه. سرطان۱۳۹٤ل،
شوال۱٤۳۷هق، جولای ۲۰۱٦م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی
او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانی |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امریکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانی<br>۲۵ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرك کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**

srak_111@yahoo.com


# لړلیك


| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سر لیکنه.................................................. | ۱ |
| ۲ | ناټو خپل غم اخیستې که دافغانستان؟.................. | ۳ |
| ۳ | څوک دافغانستان دجګړې کټونکي ! طالبان که .... | ۵ |
| ٤ | ناټو بیا دڅه لپاره راځي؟.................................. | ٦ |
| ۵ | له تکړه او منلي حماسي شاعر ملاعبدالله ثاقب سره. | ۸ |
| ٦ | پنځه ملیارده ډالر!........................................... | ۱۰ |
| ۷ | داورلینډو برید، داوباما اوښکې او دامریکا اصلي........ | ۱۲ |
| ۸ | ترکومه سکوت!؟............................................. | ۱۷ |
| ۹ | افغانستان ولې نا امنه هیواد دی............................ | ۱۸ |
| ۱۰ | برتانیا او اروپایي ټولنه!!................................... | ۲۰ |
| ۱۱ | شرم است که معاش امام مسجد از پول یهود ونصارا.. | ۲۲ |
| ۱۲ | دطالبانو مرستې دستایلو دي............................... | ۲۳ |
| ۱۳ | مفسده اداره او ولسي قضاوت.............................. | ۲٤ |
| ۱٤ | آنچه که رسانها به آن نپرداخته اند.......................... | ۲٦ |
| ۱۵ | هغه امارت چې ستنې یې په حقیدې ولاړې دي......... | ۲۷ |
| ۱٦ | لویه دوره یا دوره الحدیث څنګه او چېرې وکړم؟... | ۲۹ |
| ۱۷ | طالبانو ته دامریکا دآزادی داتل جورج واشنګټن........ | ۳۲ |
| ۱۸ | کلکڅونه.................................................... | ۳٦ |
| ۱۹ | دأمیرالمؤمنین شهادت او دامریکا نامعقول وحشي دریځ...... | ۳۸ |
| ۲۰ | طالبان وړتیا ښیي........................................... | ٤۳ |
| ۲۱ | دکابل له وژل شویو سره خواخوږي...!!؟.................. | ٤٤ |
| ۲۲ | تهاجم فرهنګي وابتذال اخلاقی............................. | ٤٦ |
| ۲۳ | په افغانستان کې امریکایي حضور دسیمې لپاره....... | ٤۸ |
| ۲٤ | اې زما مسلمانې خورې!!.................................... | ۵۰ |
| ۲۵ | دننګرهار دجهادي افقه یو بل ځلانده ستوری ......... | ۵۹ |
| ۲٦ | سې آی اې، په افغانستان کې خپل لګښتونه دنشیي | ٦۰ |
| ۲۷ | افغان کډوال: دپاکستان او افغانستان شریکې کټې! | ٦۱ |
| ۲۸ | نیپال هم له افغانستان پېښې سپکې کړې............... | ٦٤ |
| ۲۹ | دافغان دولت!! نوی پرمختګ ........................... | ٦٦ |
| ۳۰ | پشیان او په اړه یې معلومات ............................ | ٦۷ |
| ۳۱ | هم مې ووژني په خپله، هم پرما باندې ژړا کا......... | ٦۹ |
| ۳۲ | ددوی دنده نفرت خپرول دي............................. | ۷۰ |
| ۳۳ | دخانانو ښار داندام پلورنې مرکز!......................... | ۷۱ |
| ۳٤ | دأمیرالمؤمنین اختریز پیغام څه جوتوي؟.................. | ۷۲ |

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# په افغانستان کې

## امریکایي جاسوسان څومره او کوم دي؟!!

دامریکا دملي امنیت مرستیال ( ریک لجت ) له (فاکس نیوز) سره په تازه مرکه کې ویلي: دامریکا څارګره اداره په افغانستان کې، ۵ زره اوپه عراق کې ، ۸ زره جاسوسان اوخاص روزل شوي مخبران لري ، چې دنده یې امریکاضد حرکات اوافراد څارل او دامریکایي ګټو خوندیتوب دی.

ریک لجت، وایي له ۲۰۰۱ کال راهیسې چې په افغانستان کې کوم رژیمونه راغلي په مهمو دولتي پوستونو کې ګڼ همدغه افراد واک ته رسیدلي ، ددغه امریکایي چارواکي په وینا اوس هم همدغه زرګونه افراد په افغانستان کې فعالیت لري اومونږ ورته پریمانه مالي لګښت اوحقوق ورکوو.

که امریکایي ادارې او واکمن په دې خبره سخوند ووهي اوکنه چې دوئ په افغانستان کې څومره جاسوسان او خاص تالیخني لري او دندې یې څه دي، هربا ضمیره او بادرکه افغان پوهیږي او لکه لمر ورته ښکاره ده ، چې که امریکایانو په افغانستان کې همدومره روزل شوي او ګمارل شوي جاسوسان نه درلودی ، نو په هیڅ ډول ممکنه نه وه چې امریکایانو دې په افغانستان کې داشغال کرغیړنه لمن تریوې نیمې لسیزې پورې غځولې وای.

امریکایانوهمدغه پریوتي او ناولي څیري دکابل رژیم په مختلفوادارو اوپه خاص ډول په پوځي او امنیتي برخوکې په لوړو دندو وګمارلې، دنده یې ورته وسپارله چې هرهغه افغان چې اسلامي غرور او دخپلواکۍ پاکه روحیه له ځان سره ولري هغه په بیلابیلو پلمو او تورونو تورن ، شکنجه او یایي دوئ ته وسپاري.

دتیرو پنځلسو کلونو په اوږدوکې همدغوزرګونو جاسوسانو دافغانانو په سر میچنې وګرځولې ،امریکایانو ته یې دهوایي بمباریو لپاره دقیق کرودینات او معلومات ورکړل ، ددوئ دجاسوسۍ په سبب یونیم میلون افغانان په امریکایي زندانونو کې توهین او شکنجه شول ، له دو لکو زیات خلک دامریکایانو دهوایي اوقصدي حملو له امله شهیدان او په لکونو نور کډوالۍ اومهاجرت ته اړ وګرځیدل !

له کرزي رانیولې تراشرف غني او دقاتلې ټلوالي تر قوماندانانو او ترځنګ یې تر اجیر ورسنیو اوسوونو ډالري ژورنالیستانو او لیکوالو پورې، دوئ ټول هغه نمونه، ګروپونه او خلک دي، چې له شک پرته دامریکا دملي امنیت دیادو پنځو زرو جاسوسانو په جدول اوشمیره کې برجسته موقفونه اوکلیدي دندې لري .

ځکه همدوئ وو او دي چې دامریکا هراقدام او ستراتیژۍ ته زمینه سازی کوي ، هغه مثبت ارزوي او داشغال داوږدیدو اودجګړي دپراخیدو لپاره دامریکا له نبض سره سم شرایط مساعدوي.

که له نورو مثالونو تیر شو، دجان کیری په ګوتوددرول شوي رژیم واکمنانو خو دامریکایانو لپاره په جاسوسی او نوکری کې دومره مخ په وړاندې روان دي ، چې که امریکایانو په افغانستان دخپل حضوردتمدید لپاره لس کاله وخت وټاکه اشرف غني او اجرایه ریس یې نه داچې مخالفت ورسره په ډاګه نکړ، بلکې ددوه سري رژیم د(ملی امنیت شورا ) رسما له امریکایانو وغوښتل چې تاسي دنامعلوم وخت لپاره په افغانستان کې اوسیدای شي!!

دغه راز که امریکایانو له تیرو دو کلونو راهیسې څومره ملکي افغانان دهوایي بمباریو او نورو بریدونو په ترڅ کې په شهادت ورسول په یوه پیښه هم ددوه سري اداري واکمنو کوم اعتراض او اندیښنه په ډاګه نکړه ، بلکې دنړی ددوهم مفکر داخبره خو دهرچا په یاد ده، چې دناټو دتیرکال په ناسته کې یې وویل: ( مونږ پوهیږو چې دافغانستان ملکی وګړي دناټو ا و امریکا په بریدونو کې وژل کیږي، خو دا چې روانه جګړه مشترکه هدف لري نو مونږ دغې قرباني زغملو ته تیار یو)

دغه راز په هره نړیواله ناسته کې چې اشرف غني او اجرایه ریس ته یې دورتللو او خبرو موقع په لاس ورغلي ، هرځل یې دبهرنیو عسکرو په مذید شتون تاکیدکړی، په لوی لاس یې امریکااو ناټو ته په ذهن کې وراچولي چې افغانستان دستراتیژیک اهمیت او دسیمي دحساس موقعیت له امله باید پرینښودي

لکه دوارسا په ورستی ناسته کې ( اشرف غني او عبدالله ) دواړو داغوښتنه وکړه چې افغانستان دسیمي یوه پراهمیته نقطه ده امریکا او ناټو باید په هیڅ قیمت دغه خاوره پرې نږدي ، نور پوځیان راواستوي اودډیري مودي هلته لپاره پوځي حضور حفظ کړي!!!

هرڅوک پوهیږي چې دناټو او امریکا نور حضور او لګښت په هیڅ ډول دافغانستان او افغانانو په ګټه او نفع نده ، ځکه دتیري یوې نیمي لسیزي په اوږدو کې یو نیم لک خارجي او څلورلکه ګوډاګیو عسکرو دافغانستان په یوې ورې سیمي او ولسوالی کې هم امنیت رانه وستلی شو ،دافغانانوبنیادي ستونزي یې اواري نکړي ، بلکې نور ډول ډول ناورینونه یې ورته راوړل ، اوس امریکا او ناټو په دې هڅه کې ده چې دافغانستان جنګ نور پراخ اودچین ، روسیی او لمبې یې نورو ګاونډیو هیوادونو ته ور وغځوي .

مونږ په افغان ولس او دسیمي او ګاونډ په هیوادونو او ولسونو غږ کوو ، چې امریکا او ناټو هغه ښامار دی چې تنها دافغانانو او یواځې دافغانستان دتباهی اوبربادی په نیت دلته ندي راغلي، بلکې دوئ به افغانستان دجګړې دیوه ډګر په توګه کاروي اوله همدې ځایه به دهغوئ دمهارولو کوشش کوي .

نو مخکې لدې چې دغه اور ددوئ هیوادونو ته وررسیږي او دنړی لوی ښامار ددغوهیوادونو په هضمولوپیل وکړي مناسب وخت اوبهترینه چاره داده چې په یوغږ دې په افغانستان کې په خارجي اشغال او حضور کلک اعتراض وکړي او دهغه پاڅون او مقاومت چې ددغه ناروا اشغال په وړاندې روان دي کلکه مرسته او ملاتړ اعلان کړي.

# ناټو، خپل غم اخیستي، که د افغانستان؟

## خبیر احمد م

دناټو په ورستی ناسته کې چې دپولینډ په پلازمینه ( وارسا ) کې دنوموړي سازمان د۲۸ غړو او هم دناټو دپیمان شریکو هیوادونو پکې برخه اخیستي وه ، په نورو یو لړ مسایلو سربیره یې دناستي مهم ترکیز دکابل دشړیدلي رژیم له پوځي بنسټونو سره مالي مرسته او هم په سیمه او منطقه کې دروسیې دنفوذ دمخنیوي په وړاندي دناټومشترک اقدامات وو

په افغانستان کې دهغې جګړې دتودولو او پراخولو لپاره چې دامریکاپه مشري اودناټو په مستقیمه ونډه له تیرو ۱۵ کلونو راهیسې پیل اوروانه ده ، کله چې امریکا او ګوډاګیان یې ووینې چې دجګړې په میدان کې له عملي شکستونوسره نور مخ او دنابودی کندي ته نیږدي شوی ، نو په دغه وخت کې امریکا ژر دناټوکومه غونډه ترډې عنوان لاندي چې افغانستان به یواځې نه پریږدو او پوځي بنسټونه اوشارګونه به یې تقویه کوو راوغواړي

دوارسا دورستی ناستي په څیر ګڼې غونډې لکه د (بروکسل ، لندن ، برلین ، بون ) اونورې په لسهاوي نړیوالي غونډې جوړې شوي ، چې دهرې یوې شعار او انداز په افغانستان کې دامنیت تامین او ثبات منځته راوړل وو ، خو داچې ولې دعمل په میدان کې هغه خبرې چې ناټو اوغربیان یې په خپلوناستوکې مطرحه وي او چکچکې ورته کوي څوک نه ویني او دافغانستان وضعیت له یوې ورځې بلې ته دخرابی

او تباهی خواته ځي او جګړه نوره پسې تودیږي ، اسباب او علتونه یې لکه لمر روښانه دي .

ترټولو ښکاره علت یې دادی چې دامریکا او ناټو لښکري هیڅکله ددې هدف لپاره افغانستان ته ندي راغلي اونه یې دا نیت دی ، ترڅو خپل عسکر او په ملیاردونو ډالردافغاني مصالحو اویادافغانستان دساتنی او پرمختګ لپاره خاوري ایري کړي ، بلکې امریکا او ناټو له ډیره وخته دهغې سیمي لاندې کولو اومهارولو ته پیازه په ګنډه وهلی وو، چې دامریکا او ناټوباداري پکې منتفي وه .

دچارو ماهرین باور لري چې له افغانستان سره ناټو او یا امریکا کومه مرسته کوي او یا یې دلته پوځیان وژل کیږي هغوئ دافغانستان غم ندي اخیستي، بلکې امریکا او ناټو دخپلو ستراتیژیکو منافعو اوګټوپه خاطر دي په افغانستان کې اوږدمهالي حضور غواړي

اوددغه حضور اوشتون لپاره امریکا او ناټو ضروري بولي چې دکابل اوسنی مفسد رژیم او لاسپوڅي پوځي او امنیتي بنسټونه یې دامریکا او ناټو سیاستونه او پلانونه پلي او په هره بیه چې وي ساتنه ورڅخه وکړي

همدغه وجه ده چې څومره مرستي دتیرې یوې نیمې لسیزې په اوږدوکې دافغانستان په نامه اعلان او ترسره شوي ، افغانانو یې مثبته نتیجه څکه ونه لیده اونه به یې ویني چې هغه مرستي دافغانانو دترقی او یا په افغانستان کې دارامي اوثبات لپاره نه وي، بلکې صرف دهغې

جګــــړې دجـــــاري ســــــاتولو او تودولــــو لپاره وي او دي چې په هغې سره دامريکا او ناټوحضور په سيمه کې تضمينيږي

په بل عبارت ، هغه څه چې امريکا او دناټو سازمان ته مهم اوحياتي ده هغـه دچـين، روسيي او ددې سيمې دنورو هغـو قووتونـو تهديـد اوتـر ګـواښ لانـدې ساتل دي، چـې امريکايي او ناټو يې دځان لپـاره خطر بـولي ، نو که دوئ له اوکراين سره پـه دې پلمـه پـه مليـاردونو ډالر مرسته کوي چې روسيـه پـرې وګواښـي او دنفـوذ مخـه يـې ونيسي- نـو افغانستان هم اوس امريکا او ناټو ته دسيمې دکنټرول اودچين او روسيي دتهديـدولو لپـاره يوبـل سـتراتيژيک ميـدان پـه لاس ورغلـی، دوئ دخــپلې دفـــاع او دخپلــــو موخــــو دســاتنې لپـاره مجبـور دي چـې کـه هرکـال په ملياردونو ډالر دکابل رژيـم او هغـې اردو ته ورکړي چې دوئ دخپلو اړتياووپـه کـچ او ميچ رامنځته کـړي او دامريکـا او نـاټو لپـاره دسپر اوډال حيثيت لري.

مـونږ وايــو چــې افغانـــان دي ، دوارســا دورستی ناستي په تبليغاتو نه تير وځي ،هيله ده داخبره پـه خلاصـو غوږونـو واوري چـې کومه مرسته دکابل رژيـم لـه اردو سره اعـلان شوه، هغه هيڅکله داردو په تقويي او تجهيـز نه لګيږي، ترڅـو دافغانســتان لـه سرحـداتو او ارزښتونو څخه دفـاع وکـړي، بلکـې نومـوړې مرسته صرف دهغې جګړې دجاري ساتلو پـه اړخونو لګيږي، چې امريکااو ناټو ورته ترسيم کړې او تودولو ته يې اشد ضرورت لري.

# د يوه سعودي ځوان بيخي نادره کيسه

**يو ټيکسي چلوونکی سعودی کيسه کا چې له رياض نه مې دمام ته څلور ځوانان سپاره کړل، د ټيکسي ډريور وايي: دا څلور واړه ښه په سـور کـې نـه وو، مست ځوانان وو او مجلس يې هم بې سوره وو، دی وايي په لاره کې د تېلو اچولو له پاره ودريدلم او د مازديګر د لمانځه وخت هم و تېل مې واچول وروسته مې ځوانانو ته وويل: که مو خوښه وي د مازديګر لمنځونه به وکړو؟**

**خو د ځوانانو ځواب هېښوونکی و! . زما څنګه ته ناست ځـوان پـه دوی کې لېږ مشر و او داسي ښکاريده چې د دوی د سفر مشر هم دی ، شا ته يې خپلو ملګرو ته وکتل وروسته يې زما د لمانځه کولو د پوښتنې پـه ځـواب کـې راته وويل: موږ خو لمنځونه نه کوو.. ټيکسي ډريـور وايـي: زه حيـران شـوم چې دا څه وايي داسې مسلمان هم وي چې لمونځ نه کوي!، ورته ومې ويل: يارانو! دا منم چې تاسو ځوانان يئ، هر څه به کوئ خو لمـونځ بايـد هيڅکلـه پرېنږدو له الله سره د اړيکو همدا يوه لاره راپاته ده دا لاره بايد هيڅکلـه ونـه ړو او لمونځ خامخا بايد وکړو. ټيکسي ډريور وايي: ځوانانو پخپلو کې يوه بل ته وکتل او زما څنګ ته ناست مشر يې راته وويل: سمه ده څه چې لمنځونـه وکړو، لمنځو ته ښکته شوو، اودسونه مو وکـړل او زه د لمانځـه د امامـت لـه پاره مخته شوم څلورو واړو ځوانانو اقتدا راپسي وکړه، مسـافرانه دوه رکاتـه لمونځ و سلام مې واړوه چې مخ مې را وګرځاوه هغه مشر يو يې لا په سـجده پروت و، موږ ټول ورولاړ شوو چې ځوان مو وښوراوه له حرکته لويدلی و او مهربانه الله ته يې روح سپارلی وه! .**

**ملګري يې سخت خپه او ټول په ژړا شول او يوه ملګري يې زيات ژړل، وروسته هغه ماته وويـل چـې دا زمـا مشر- ورور دی او بـاور وکـړه چـې دا پنځلس کاله کيږي چې لمونځ يې نه کاوه! .**

**خاتمې پټې او نامعلومه دي، په مرګ هيڅ باور نشته، او مـومن بايـد د هر لمانځه په مهال په دې فکر وي چې شونې ده دا يې وروسـتی لمـونځ وي لکه په يوه حديث کې راغلي رسول الله صلی الله عليـه وسـلم تـه يـو سـړی راغی ورته ويې ويل: يارسول الله! په لنډه توګـه مـې پـوه کـړه، هغـه ورتـه وويل: چې کله لمانځه تـه ولاړ شـې داسـې لمـونځ کـوه لکـه همـدا دي چـې وروستی لمونځ وي.**

عن أبي أيوب رضي الله عنه قال: جاء رجل إلـى النبـي صلى الله عليه وسلم، فقال: يا رسول الله، علمني وأوجز، قال: إذا قمت في صلاتك فصل صلاة مودع. رواه احمد و ابن ماجه.

**الله مو دې لمونځونه د سترګو يخوونکي وګرځي او الله دې زموږ خاتمې په ايمان او ښو اعمالو کړي.**

# څوک دافغانستان دجګړې ګټونکې!



# طالبان که اشغالګر؟!

(شاهد حقاني)

داهغه پوښتنه ده ،چې ځواب یې خورا ډیر روښانه او دلمر غوندې ښکاره دی، هرڅوک چې دافغانستان دجهادسره یو ډول فکري ،منطقوي اویا فزیکي اړیکه لري،هرو مرو پدې پوهیږي ،چې روانه جګړه کې دکوم لوري تله درنده او دکوم سپکه ده !که دتکنالوژۍ ،مډرنو وسلو،ډیرو عسکرو او بې خرته پیسو پلې ته وګورو، نو بیا خوداشغالګرواودکابل دواکمنو اودامریکایانو په کوټو دجوړې شوي اردو!!! پله درنده ده، خو که ځمکنیو حقایقو، معنویاتو،دیني شعورته ځیر شواو جنګ کې دفتحو پر له پسې توپاني څپوته وګورو، نوله ورایه داسلامي امارت مجاهدین ګټونکې ښکاري،طالبان چې دخپل ولس ځواکمن ملاتړ له ځانه سره لري او موخه یې هیواد کې د اسلامی شریعت نفاذ، دهیواد خپلواکي او داشغالګرو بهرنیانو وتل دي ،لا له پیله دطالبانو دسپیڅلو برناماو اهدافوته په کتو په کوټلي توکه دبرې او فتحې رمزونه په ځلیداوو او اوس خو چې پدې جهادي مبارزه (۱۵)کاله اوړي، پدې نا انډوله جګړه کې یې ،هوډ هماغسې غښتلی او دکوم ډول رکاکت اوضعف سره مخامخ شوی ندی .

خو ددې ټولو څخه ښه داده، چې دخپلې مدعی دزباد لپاره هغه خبره باندې بسنه وکړو اودطالبانواوکابل واکمنوترمینځ دکټات او بیلات مقایسه یا پرتلنه لویدیځ کې دمنل شویوورځپانواو تحلیلګرانوپه حواله ابرازکړو: سي ان ان امریکایي تلویزون د افغانستان د وروستیو پېښو په اړه وایي، چې د افغانستان د روانې جګړې ځارونکي په دې اند دي، چې دغه جګړه د کټلو نه ده، بلکې برعکس طالبان یې د کټلو په درشل کې دي.

د سي ان ان په وینا د دې خبرې لپاره یو شمېر هغه دلایل هم شته، چې دحکومتي چارواکو له خولې اورېدل شوي دي.

د کابل چارواکي وایي، چې په دې وروستیو کې د هېواد کنې برخې د طالبانو لاسته لوېدلې او دې سره د خلکو په ذهن کې دا شعارونه کرځي، چې د ځکمنیو حقایقو له مخې طالبان د دې جګړې کټونکي دي.

سي ان ان زیاتوي، چې طالبان وخت پر وخت په لرې پرتو سیموکې د جګړو او ښارونو کې د غلچکي بریدونو له لارې حکومت او بهرنیو ځواکونو ته خپل زور ښیي، حتی د ولسمشری مانۍ په دوه سوه متری کې یې داسې برید وکړ، چې تمه یې هم نه کېده.......

دې وروستیو کې چې دافغانستان سره دمرستو په نامه دپولینډ په( وارسا) کې دناټوسرمشریزه جوړه شوي وه او د(۲۰۲۰ز) کال پورې یې هرکال څلورنیم ملیارده ډالر چې یو ملیارد به یې دناټو هیوادونه او درې نیم ملیارده ډالر دامریکا حکومت دکابل امنیتي ادارو ته منظورکړل، هم یې دکابل داردو سره تر ټاکلې مودې پورې ،دخپلو پوځیانومرسته ،پوځي شتون ،روزنه اود ملاتړژمنه وکړه، خو ترغونډې وروسته دامریکایي چارواکیو له خولې نه څه داسې توری رسنیو راواخستل ،چې پکې دافغانستان داوسنی جګړې له کټلو نهیلې وواو دخپلې ناکامی پړه یې کله په یوه ګاونډي هیواد او کله په بل وراچوله.

حقیقت دادی ،چې دوئ دادرک کړي، چې دافغانستان جګړه دکټلونه ده او نه به پکې دوئ دپام وړ کټات ترلاسه کړي ،ددوئ دتیوررسنانو وړاندوینې او دافغانستان په باب دبریالیتوب پیشبینی چورلتې غلطې وختې او هغه شومې ارادې چې دوئ به دمجاهدینو دا مسکن او پخه ځاله ورانه او دفحشاوواوبې دینیو په هډو بدله کړي، یوه خیالي نظریه جوته شوه او کومه زیربناء یې ونه موندله، نو دوئ اوس داوبو اخستې انسان په شان دخپل نجات په خاطر څک ته هم لاس اچوي او دخپلې ناکامی پړه کله په یوه او کله په بل هیوادوراچوي ،خو اصلي خبرداده، چې امریکایانو داجګړه بایللې او دکټات کوم چانس ورته ندی پاتې ،امریکایانوچې دافغانانو په دین ،خاوره او کلتوریې یرغل کړی، په وړاندې یې په ولسي کچ دجهاد او مقاومت روحیه ورغ ترېلې پیاوړې کیږې او ددوئ دکامیابی او پرمختګ چانسونه کمیږې.

ښه داده، چې امریکایان دا میلیاردي ډالربسپنه خپل هیواد اوخپل بې روزګاره ولس باندې مصرف کړي،اوافغانان نور پریږدي، چې دخپلو ارمانونواو هیلو په رنا کې دخپل برخلیک پریکړه وکړي اودنورو مزیدو وینوتویولواودربدریو مخه دتل لپاره ونیول شي !

# ناټو! بيا دڅه لپاره راځي؟

بشير

ناټو دخپلې وارسا په سرمشر‌یزه کې اعلان وکړ چې یوځل بیا افغانستان ته دجنګ لپاره راځي! اود یوملیارد امرکایې ډالرو مرسته کوي.

په دې سربیره برتاينې هم افغانستان ته د پنځوس نورو سرتيرو راليږلو اعلان و کړ دا په داسې حال کې چې برتانيا له وړاندې افغانستان کې ۴۵۰ عسکر لري.

څنګه چې دنړۍ غاصبو او استعماري ځواکونو د تيرو ۳۶ کلو راپه ديخوا زمونږ د هېواد خاوره دخپلو شومو پلانونو دازمويني ډګر ګرځولې ده اومونږ يې وحشيانه او ظالمانه جنګونه تپلي دي ، له استعماري ځواکونو سره يوځاى يوشميرمغرض ګاونډيان هم دامريکا سره زموږ په ځورولو او کړولو کې لوى سهم او ونډه لري.

وخت په وخت هغوى هڅه کړيده چې زمونږ له مجبوريتونو څخه په ناوړه ګټه اخستلو افغانستان کې خپلې شومې موخې ترلاسه او ورته مختلف پلانونه په پام کې ونيسي.

په دې توګه يې تراوسه څومليونه افغانان شهيدان او ټپيان کړيدي او په زرګونو نور يې په زندانو کې بند ساتلي چې ډول ډول وحشيانه اذيتونه او تعذيبونه ورکوي.

ښکېلاکګر هېوادو دروا او ناروا دتميز پرته کړنې سرته رسوي چې په سبب يې په افغانانو خپل وطن او خپله خاوره سور انګارګرځيدلې او پکې هره ورځ لوى شمير افغانان دوسپنو نينې چيچي.

په دا وروستيو کې افغانستان کې دامريکا په مشرى کيدونکو جنايتونو او ظلمونو دومره پراخه بڼه مندلې چې نه يواځې له امله يې افغانان دوسپنو نينو چيچلوته اړيستل شوي بلکې دافغانستان په چم او ګاونډ کې ميشت ولسونه يې هم له امله دخورا سترو بدمرغيو او ناخوالو ښکار دي او ددې ناروا جنګونو له امله په ډول ډول ستونزو او مشکلاتو کې تر غوږونو پورې ښکېل دي.

په ۱۹۷۹ زکال کې دشورويانو ديرغل په مهال چې افغانستان او افغان ولس دکوم ډول بوږنوونکو حالاتو سره مخ شو هغه ټولې نړۍ ته ښکاره دي له امله يې يونيم مليون خلک شهيدان شول ديته ورته شمير ټپيان شول او له پنځه مليونه څخه زيات ګاونډيو هېوادو ته مهاجر شول کوم چې تراوسه هلته دهجرت ناخوالې او نادودې زغمي او دځايې حکومتونو لخوا په مختلفو حيلو او بهانو ځورول کېږي.

د۱۹۹۶څخه تر ۲۰۰۱ زکال پورې افغانستا ن کې په نسبي ډول ارامې او سوکالې راغله ، دافغانستان ۹۵ سلنه خاوره دشراوفساد له مونګلو څخه ازاده شوه پکې امنيت او سولې وزرې وغوړولې او په دې سربيره غوره لا داچې اسلامي نظام پکې عملاً نافذ شو دهېواد د ارضى تماميت سالميت خوندي شو دهېواد دبيا رغونې کارونه پرته له کوم خارجي ډاډه پيل شول نږدې وه چې ددغه نظام د برکاتو او دفيوضاتو وړانګې ټوله سيمه ترخپل اثر لاندې راولي او هلته هم دافغانستان څخه په نقل د ورته نظامونو راوستلو غوښتنې وشي او ممکن ستړيو افغانانو دارامۍ ساه اخستې واى او دتل لپاره دجګړې لمبې وژل شوي واى

خو زمونږ په خاوره دنړۍ يوبل زبرځواک هېواد (امريکا) د۴۹ هېوادو دپوځي ، مالي سياسي او تبلغاتي ځواک په ملتيا يرغل راوړو افغانان په يوبل

ازمایښت او ناورین واوښتل دسولې او ارامۍ هیلو ټکان وخوړاو مظلوم افغانان بیا دویرونو او مرګونو په ټغر کیناستل.

په ۲۰۰۱ زکال کې چې کله امریکا دیرغل تابیا نیوله داسې یې انګیرله چې په ډېره لنډه موده او اسانۍ سره به افغانستان دتل لپاره اشغال او قبضه کړي په اکتوبر میاشت کې امریکا بې ۵۲ بمباردونه پیل کړل دهغو په ترڅ کې زرګونه افغانان شهیدان او ټپیان شول په زرهاوو کروز مزایل له سمندر څخه دافغانستان په خاوره وویشتل شول دناټو تر چترلاندې یې لکونه عسکر دنړۍ څخه راټول او افغانستان ته راوستل وربانديې بې شمیره بې ګناه انسانان یې شهیدان او ټپيان کړل زندانونه یې له بندیانو څخه ډک کړل ټولې پرمختللې عصري وسلې یې وکارولې لیکن افغانان مات نشول، سترې نشول او د ازادې غوښتلو نه په شاه نشول دامریکایانو او ناټو په وړاندې په نره پورته شول داسې جهادي کارنامې یې وړاندې کړې چې په لیدلو یې ټوله نړۍ حیرانه شوه دامریکا او ناټو ټول پلانونه او تدبیرونه ناکام شول ټولې وسلې او حربې یې بیکاره شوې دبې وسلې افغانانو په مقابل کې یې ټوله عصري جنګې ټیکنالوجي استعمال کړه خو بریالیتوب یې ترلاسه نکړ پریمانه ډالر یې ولګول دمیډیا له لارې یې دڅان په ګټه پریمانه تبلیغات وکړل دخپلو عسکرو دمورالونو لوړولو پخاطر یې مختلفې حیلې او دسیسې په کار واچولې.



ددې ټولو سربیره یې په جنګ کې بری په برخه نشو آن لا داچې دامریکا اقتصاد دتاریخي زوال څپې وواهه ټول بانکونه یې خالي شول دیته اړشوه چې په افغانستان کې دخپل پوځ په شمیر کې کمښت راولي خپل پوځي لګښتونه کم کاندي او ددې لپاره چې دافغانانو اودنړۍ د خلکو په ستر ګو کې خاورې وشیندي د مذاکراتو نغاره وغږوله خو ډېر ژر دامریکا منافقت څرګند شو چې هیڅکله یې له زړه مذاکراتوته ژمنتیا نه لرله او نه یې غوښتل چې ستونزه دخبرو دلارې حل کړي

بیا یوه مرحله داسې راغله چې دناټو زیاترو غړو هېوادو خپل عسکر له افغانستانه وویستل او دامریکا له ملګرتیا کیناستل خو امریکا په هغوی باندې فشار زیات کړ چې خامخا خپله فیصله بیرته واخلي او افغانستان ته خپل څواکونه بیا را ولیږي

په وارساه کې دناټو له لوري بیا افغانستان ته دجګړې لپاره راتلل دهمدي امریکايي فشار وجه ده چې امریکا غوښتل ناټو بیا افغانستان ته دجنګ لپاره راولي او بیا یې په جګړه کې ښکېل کړي

دحیرانیتا وړداده چې ناټو ولې بیا افغانستان ته راغله؟ حال داچې ناټو هم هغه ناټوده چې دلکونو عسکرو دشتون باوجود یې په جنګ کې مجاهدینوته شکست ورنکړای شو او دخپلو استعماري موخو په ترلاسه کولو کې پاتې را غلې وه اوس بیا اخر په کوم نوي ډاډ افغانستان ته رادرومي؟

ناټو ته نه افغانانو بلنه ورکړې ده چې د هغوی دساتنې او دفاع لپاره دې راشي! اونه دملګرو ملتونو لخوا تري غوښتنه شوې ده خو ښکاري چې دامریکایانو غوښتننه داده چې ناټو دې افغانستان ته بیا څواکونه راولیږي چې دا ددې ښکارندوي کوي چې امریکایان لا تراوسه پخپلو بدو کړو وړو باندې پښيمان ندي او نه دخپلو شومو ارادو ترلاسه کولو نه ناست دي بلکې امریکا په افغانستان او منطقه کې نوره ناقرارۍ پیدا کول غواړي په سیمه کې دنورو جنګونو شروع کولو تابیا لري دیته په کتو اړتیا ده چې دناټو دویم واري راتګ موضوع ته دسیمي ګاونډیو هېوادونه څیر اووسي او راپورته شي دناټو ددې پریکړې پرضد باید غږ پورته کړي او په ګډه یې دمقابلې په لارو چارو غور وکړي.....



# له تکړه او منلي حماسي شاعر

# ملا عبدالله ثاقب سره مرکه

مرکیال: خالد رعد

**پوښتنه : لومړی که ځان راو پېژنئ؟**

ځواب : زه عبدالله د مرحوم مولوي عبدالولي رحمه الله زوی، د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ د زاړه کلي اوسېدونکی یم چې في الحال له خپل خواږه وطنه لرې د هجرت په دیار کوټټه کې ژوند کوم.

**پوښتنه : له کله نه مو شاعري پیل کړې او د شاعري انګیزه مو له کومه وه؟**

ځواب: شاعري سره مې له کوچنیوالي مینه وه خو په لیکلو مې یې په هغو شپو ورځو کې پیل وکړ کله چې طالبانو کابل فتحه کړ، دا چې انګېزه له کومه وه، دقیق نشم ویلی؛ مګر دومره ویلی شم چې له دې ورانـدې د هیوادوالو بـدې شـپې ورځـې او د کابـل د فتحـې نیمکرغه ورځې او شپې د دې لامـل شـوې چې خپل احساسات د شعر په چوکاټ کې د کاغذ په مخ ولیکم.

**پوښتنه: شعر ولې لیکئ؟**

ځواب: د نورو فعالیتونو تر څنګ دشعر له لارې هم د دین، هیـواد او ټـولنې ښه خدمت کیدلی شي، په ادبي ډګر کې بیا د شعر ژبه ډېره موثره ده، ګورئ! په هیـواد چې هر کله ناروا یرغلونه شوي، د شعر په مټ یې هم مقابله شوې چې اغیز یې مـوږ لیدلی، نغد چغـد مثـال یـې د میونـد ټپـه یادولی شو چې د غازیانو حتمي ماتې یـې په یو شاندار بري بدله کړه.

**پوښتنه: شعر لیکلو ته مو په نـثر لیکلو ترجیح ولې ورکړې؟**

ځواب : له نثر سره مې طبعا چنـدان نه لګیږي او ځـان مـې هـم پـرې نـه دی ازمایلی، او بل کله چې ما پـه شـعر لیکلـو پیل کاوه، هغه مهال په ټولنه د شعر اغیـز ډېر ښکاریده؛ ځکه چې کوم اشـعار بـه د ترنم بلبلانو په خپلو خـوږ حنجـرو زمـزه کړل، تر ډېرو غوږونو به رسـیدل او مـوثر هم وو.

**پوښتنه: تر اوسه مـو پـه دې لار کې د چا پیروي کړې ده؟**

ځواب : په عموم کې خو د ټولـو پـه دین او هیواد مینو مشرانو شـاعرانو پـیرو یم مګر په ځانګړي ډول مې دچا په پل قدم نه دی ایښی.

**پوښتنه: شاعر باید څنګـه شـعر ولیکي؟ چې هم یـې دخپـل زړه تناکـه چولې وي او هـم یـې ټـولنې تـه څـه ورانـدې کړې وي.**

ځواب : زما په نظر ښه شعر هغه دی چې ښه مضمون ولـري، یـو داسې پیغـام پکـې نغښـتی وي چـې لوسـتونکی یـا اورېدونکی ترې یو څه زده کـړي، او هغـه څه پکې مراعت شي چې شـعر تـه ښـکلا ښښي، نو په دې صورت کې کولی شـو هـم ښه شعر ولیکـو، هـم ټـولنې او ژبـې تـه خدمت وکړو چې په نتېجه کې یې د سـړي زړه یخیږي.

**پوښتنه : د سنګر او مورچـل پـه یـارانو شـاعرانو کـې مـو څـوک ډېـر خوښیږي او ولې؟**

ځـواب: د سـنګر او مورچـل یـاران شاعران مې ټول خوښیږي، ټولو ته احترام لـرم، دوی دیـن او ولـس تـه د قـدر وړ خدمتونه انجام کړي، د حماسي شعر ډګـر یې تود ساتلی، الله تعالی ته سوال کوم چې له موږ سره یې ټول خدمات په خپل دربـار کې قبول کړي، البته هغه شـاعر مـې ډېـر خوښیږي چې شعر یې بامعنی او سپیڅلی پیغام له ځان سره لري.

**پوښتنه : د شعر ليکلو دې ځای ته رسيدو کې مو څه شي ډېر رول لرلی؟**

ځواب : په شعر ليکلو کې له ډېر صبر څخه کار اخلم، ښه دقت او غور پکې کول او هيڅکله يې په بشپړولو کې بيړه نه کوم، د کميت په ځای يې کيفيت ته ډېر پام کوم، دغه راز په خپل شعر نظر ثاني هم له پامه نه غورځوم، که دکتلو لپاره يې څوک راپيدا شي ضرور يې ورته ورانـدي کـوم، لنډه دا چې په شعر کې تـر اوسـه شـاگرد پاتې شوی يم.

**پوښتنه : هر شاعر غواړي منلی او ټولنې ته مقبول شعر وليکي، دوی د دې لپاره څه بايد وکړي؟**

ځـواب : د داسي يـو ارمـان تـرسره کيدلو لپاره مطالعه ډيره اړينـه ده، شـاعر بايد د منليو اديبانو نثرونه او شعرونه ډير مطالعه کړي، دغه راز د سـيرت او تـاريخ کتنه هـم د شـاعر د علـم زياتېـدو لپـاره ضروري ده، دوی بايد يوازې د سـيلاب او قافيې په زده کولو اقتفا ونه کړي بلکې هر په خپل هر شعر نظـر واخـلي او د لا ښـه والي په هڅه کې شي.

**پوښتنه: تاسي ډېر شـعرونه پـه نعت خوانانو ويـلي، ايـا لـه بلـې خـوا نـشر يې ېې اغيزي وي؟**

ځواب : زه اکثر تراني ليکم چې نعـت خوانان يې راته زمزمه کـوي، غـزلي چـې عموما په مجلو او ويب سايټونو يا ټولنيزو رسنيو کې نشرېږي، ډېرې کمې مې لـيکلي دي، کوم غزل چې د نعـت خوانـانو لخـوا ويل شوی په هغه مې بسنه کړې او چـاپي رسنيو ته مې نه دی ليږلی خـو اراده لـرم چې نور دې اړخ تـه هـم پـام وکـړم، او د شعري ټولگې چاپولو ته مې هـم اوس زړه ښه کړی دی.

**پوښتنه: په اوسني جهـادي ادبي بهير دا انتقاد کيږي چـې د کميـت پـه لحاظ ښه دی مگر کيفيت يې ټيـټ دی، تاسو يې څرنگه ارزوئ او سپارښـتنې مو څه دي؟**

ځواب : که دې ته وکتل شي چـې پـه حماسي شاعرانو کې ډېر کم د ادبيـاتو لـه پوهنځي فارغ او شـاعران شـوي او ډيـر هغه دي چې د ډېر شوق او لږ مطالعې پـه زور يې شعر زده کړی؛ نو بيا يې شـعرونه که ډير ښه نه دي بـد هـم نـه دي، خـو د کيفيت د ټيټوالي لويه وجـه يـې دا کيـدای شي چې په مطالعـه يـې ځانونـه نـه دي روږدي کړي او بل موږ ادبي ټولنې هم نـه لرو چې نوی شاعر ورته په خپـل شـعر د کره کتنې په موخه او په دې ډگـر کـې لـه مشرانو شاعرانو دمشورې اخيسـتلو لپـاره رجوع وکړي، مگر له دې ټولو نيستيو سره سره په دوی صد افرين چې سنگر يې گـرم ساتلی.

**پوښتنه: په دې وروستيو کې مـو تازه اشعار نه معلوميږي وجه يې څـه ده؟**

ځواب : ځان مي نـه دی بـې شـعره کـړی، البتـه د ژوندانـه بوختيـاوو ډيـر مصروف کړی يم او د پخوا پـه پرتلـه کـم شوي دي، څه مې چې ليکلي هغه مې مـلا فقيرمحمـد درويـش، مولـوي عبـدالحکيم سجاد او قاري عبدالعزيز نـوراني صـاحب ته ورکړي چې ان شاءالله ډير ژر به د دوی د خوږو غږونو د مينوالو تنده پـرې ماتـه شي.

**پوښتنه : په پای کې که خپـل يـو شعر راسره شريک کړئ.**

ځواب : دا يو غزل چې تازه مي ليکلی درسره شريکوم.

خـداې دي تـل لـره افغانـه مجاهـده
د وخـت لويـه قهرمانـه مجاهـده
د نيکـو تـوره دې پـرې نښـوده زنـگ ده
شـاباس شـاباس مسـلمانه مجاهـده
پام چـې دام د فتنـه گـرو کـې را نـه شـې
د عمـر پـه پلـه روانـه مجاهـده
خاونـدان د زور او زر دې کـړل نهـيلي
غـلام نـه شـوې د چـا، گرانـه مجاهـده
تا چيلنج يې چې عصـري ټيکنـالوجي کـړه
نـړئ ځکـه ده حيرانـه مجاهـده
د سرونـو پـه قيمـت گټلـې سـوبه
درنـه يـو نـه سي ارزانـه مجاهـده
سردي خم نه شي د وخت هيڅ يو طاغوت ته
زه دي ځـار شـم لـه ارمانـه مجاهـده
لـه غليم نـه پـه ميـدان گټلـی جنـگ چـې
پـر ميـز و نـه بـايلې ځوانـه مجاهـده
د اميد سترگې دي خاص دا سـتا پـه لـوري
زمـوږ د هيلـو ترجمانـه مجاهـده

-------------------------

مننه چې وخت مو راکړ.

له تاسې هم مننه کوم ژوندی اوسې.

# پنځــه ملیارده ډالــر!!

دعابد لیکنه

په شلم قـرن کـې افغانسـتان دوارسـا تـړون ! ژور زخمونـه وخوړل اوترهغو ترې وکړېد چې یویشتمه پیړۍ پرې راورسېده، لایې دآرام ساه نه وه اخیستې چې دیویشتم قـرن لـه پیـل سره سـم پرې ناټو تړون! څمکه او آسمان سره اور کړل، ټولو اشربـانو یـې په ټول زور او ځواک پرې داسې یرغل راووړ، چې گـواکې ماتـه اوشکست یې دچا په خیال کې هم ور تېرنه شي، څکه دادیویشتم قرن یرغل و او دبشریت دمحوې ټیکنالوژۍ پکې ډېره پرمختللې وه.

په لومړۍ پلا چې نړۍ دوه قطبي وه، شمالي قطبـي خرسـانو خپلو حریفانوته دتورې برېښ په افغانستان کې ښوده چې له هیڅ راز وحشته یې لاس نه اخیسته، په مقابـل کـې یـې حریفـانو هـم دافغانستان ولسـی مقاومـت د خپلـواکۍ جگـړه دجهـاد پـه نامـه تائیدوله اوله مجاهدینو یې پوره ننگه کوله.

خو داځل چې امریکا دنړۍ یکه تـازه ده اوخپـل سـیال نـه ویني دافغانستان له جگړې دکبر خوند اخلي اوپـه هـیڅ صـورت ددې خاورې کراري نه غواړي، څکه نـو دغیـورو افغانـانو ولسي- مقاومت ترهگري ده! اومجاهدین ټولې نړۍ ته خطردی .!!

ددې لپاره چې په سیمه کې یې نظامي حضـور برقـراروي او ددویم قطب دبیا سرراپورته کولو احتمال یـې لـه منځـه وړی وي؛ په افغانستان کې اور او جگړه ورته دځـان پـه گټـه ده ، ددې اور دتازه ساتلو لپاره اړتیاوه چې دڅو کلونو لپـاره ورتـه دسـون مـواد تیارشي، څکه نو امریکا اوموٌتلفینو یې په خپلو کې له ډېرو هلـو ځلو وروسته چې په دې اړه یې ترسره کړې اویوبل ته یې قناعـت پرې ورکړ، یو توافق ته ورسېدل، ددغـې معلـومې ونـډې یـواځې داعلان لپاره یې دوارسا غونډه تیاره کړه او زمونږ دوه سري یې هم ورته په نمایشي ډول راوغوښتل او پنځه ملیارده ډالرمرسته! اعـلان شوه. هو! دامرسته دبیارغونې لپـاره نـه، بلکـې یـواځې اویـواځې دنظامي لگښتونو لپاره ده چې پـه اصـطلاح یـې افغانسـتان ورتـه تربل هرڅه زیاته اړتیا لري!!؟

نو په دې کې شک پاته نه شو چې امریکا اوملگري یې پـه هیوادکې سـوله نـه، بلکـې جنـگ او دجنـگ داوږدولـو اسباب رامنځته کول غواړي، چې په وار واریې دلته دنظـامي حضـور پـه اړه له گډو وډو ځرگندونو هم همدا حقیقت معلـوم شـوی، اوس که خبره له افغاني لیدلوري وکړو او ووایو چې خارجیان خـو پـه ریښتیا هم زمونږ له غمه نه دي مړه، ولې ددې جگړې پـه دوام کـې افغانی لوری هم باید مشخص شي چې څوک په هیوادکې سوله نه غواړي اوکـوم افغانـان دجنـگ ددوام عامـل دي؟ دهمـدې ټکـي دوضاحت لپاره که له یوه خپلواک سیاسي بُعـد اومسـتقلې زاویـې څخه دې مسئلې ته وگورو، په ټوله کې دافغانستان په جگړه کـې دوه جهته دي: یو امریکا او ورسره دناټو هیوادونه اوبل افغانستان اوافغانان یاپه بل عبارت دوارساتړون له یرغل وروسته په یویشـتم قرن کې دامریکا اوناټو دغړو هیوادونو په یرغل کـې دوه لـوري دي: یومهاجمین اویرغلگر اوبل مدافعین.

داهغه واقعیت دی چې ټوله نړۍ یـې لـه دبانـدې څخـه پـه همدې ډول ویني، څکه دنړۍ خلک ټول ړانده نه دي چې غـربي میډیایې په ړندو سترگو په ځان پسې بـوزي،بلکې ډېـری پوهـان، اهل خبره، سیاستپوهان اوځیرک خلـک دخپـل تعقـل پـه رڼـاکې همدا حکم کوي اودلوبې هرلوبغاړی چې په هرنامه ځانته چانس برابروي دوی یې پېژني.



"دوارسا له غونډې وروسته دامریکا دامنیت شورا سلاکار اودناټو سرمنشي چې په خپلوکې رازونه سره شریکول: یوه بل ته وویل : عجیبه ده چې پرافغانستان موخپل بربنډ یرغل ته له ځان سره افغانان په دوه ټکویوځای کړي: یو ترهګري اوبل دپاکستان احتمالي یرغل، چې دلومړي تعریف دوی ته هم معلوم نه دی او ددویم په اړه له دوی پرته دنړۍ هیڅ ولس تصور هم نه شي کولی، خو یو وخت به یې په دې خبرو سر خلاصیږي".

اوس که دیوه حقبین لوستونکي په حیث ټولي ماجراته دحقیقت په سترګو وګوروچې دامریکا حضورپه افغانستان کې دڅه لپاره ؟دناټو دمشـــروطو مرستو هـدف څه شي؟ اوتر ټولوحیرانوونکې یې لا دلاسپوڅو اخلاص او سپېڅلی هدف یعنی دافغانستان له خاورې دفاع ده !!!؟

په ربښتیا چې زمونږ ډېری افغانان څنګه په اغفال کې اچول شوي اوڅه ډول له رنو حقیقتونو ړانده دي په تېره دکابل اداري عسکر او دڅو افغانیو معاشخواره چې لا اوس یې هم دامریکا له اشغاله سترګې ړندې دي اودپاکستان دموهوم اشغال په دفاع کې یې ځانونه مرګ ته ورکړي اونه پوهیږي چې دوی داشغال په وړاندې جنګیږي اوکه داشغال په دفاع کې وژل کیږي؟

طالبان پاکستاني دي ځکه یې باید په وړاندې کلکه مقابله وشي ! امریکایان او انګریزان مو دآبازامن دي، خیردی که له توپ او ټانک سره مو په هیوادکې ګرځي چې دهیواد دځمکې اوفضا اختیاراوسیاسي واک دې هم ورسره وي ؟!!

دکابل اداره اوسرخېلان به یې ځکه له دې اغفاله وباسو چې دهغوی ګټې دهمدې خرسرو په اغفال کې خوندي دي، ځکه کورونه یې له هیواده بهر دي چې د روان تاړاک حساب به ورسره ځوک نه شي کولای، نور په دې هرڅه پوهیږي چې په هیوادکې څومره لاسونه اچول شوي اوهرهیوادته څومره ونډه تعین ده.

هغوی چې روان مقاومت ته دشک په سترګه ګوري اوټپل شوې اداري ته قانوني بڼه ورکوي؛ پورته وضاحت ته دې جواب ولټوي اودوارسا دغونډې پنځه ملیارده ډالري مرستې تاو ته دې تاوده وي.

# زړور مراد

## «لنډه کیسه»

**ژباړه: وحیدالله اوریاخیل**

مراد له خپل کلي لږ وړاندې دښتې ته په لرګیو ټولولو پسې لاړ.

ټوله ورځ یې تېره کړه. شپه شوه، نیمه شپه له یو ځناور سره لاس او ګرېوان شو. مراد د ځان له وېرې په ځناور کلک کلک ګوزارونه وکړل، د سهار مخه وه چې مراد ځناور له پښو وغورځاوه او ویې واژه.

مراد لږه دمه وکړه، یوې لوېې ډبرې ته یې ډډه ووهله، خو یو وخت یې ځناور ته پام شو چې پوستکی یې ډېر ښکلی دی.

مراد ځناور په ډېرو خواریو تر کلي را ورساوه، کلي کې یې یوه ګاونډي ولید، چیغه یې کړه هلی هلی چې مراد زمری ښکار کړی.

مراد حک حیران شو، له ځانه سره یې وویل دا به زه نه یم چې زمری مې ښکار کړی.

ده فکر کړی و چې د خپل کلیوال تیمور سپی یې ښکار کړی دی، له همدې کبله وېرېدلی نه وو. له ځانه سره یې وویل هی هی که هلته خبر شوی وای چې دا زمری دی نو زړه به یې درېدلی و.

شفيع زوی

# داورلینډو برید،

## داوباما اوښکې او د امریکا اصل څېره

دجون په ۱۲ مې نېټې دیکشنبې په ورځ عمرمتین نومي یوافغاني الاصل ۲۹ کلن امریکایې ځوان دفلوریډا ایالت په اورلینډوښارکې دهمجنس بازانوپلس نومي نایټ کلب ته دیو ټوپک اویوې تمانچې سره په ورننوتلوتوانېد؛ دلته راټول شوي ۳۲۰ همجنس بازان یې برمته کړل بیا یې پرې ډزې پیل کړې ؛ تر درې ساعتونوپورې ډزودوام وکړ چې په نتیجه کې ۵۰ تنان قتل او ۵۳ نور ټپیان شول .

نه دکلب دامنیت لپاره گومارل شوي پولیس اونه هم دهمجنس بازانودا ډله ددې برید په مخنیوي وتوانېده تردې چې دبهرنه نورامنیتي ځواکونه راوغوښتل شول اودهغوئ سره دډزوپه تبادله کې درې ساعته پس عمرمتین هم شهید شو.

په تېریو کال کې دادخپل نوعیت څلورمه حمله ده چې په امریکا کې ترسره کېږي خودا پکې ترټولوستره ده نوځکه یې امریکایان (( مني ناین الیون )) بولي .

ددې پېښې نه پس دامریکا فدرالي اداري ایف بي آی ادعا وکړه چې درې کاله وړاندې یې دتوندلاروسره دعمر متین دروابطوپه اړه ځنې شواهد ترلاسه کړي وواوپدې اړه دیادې ادارې غړو دعمرمتین سره درې ځلې لیدلي هم وخو دڅېړنو نه پس ورته دعمرمتین اودتوندلاروترمنځ دروابطودشتون په اړه داعتبارورهیڅ دلایل لاس ته نه وو ورغلي نوځکه دهغه دوسیه تړل شوی وه .دعمرمتین پلار میرصدیق متین نومېږي چې په فلوریډاکې اوسېږي اوپه امریکاکې د ((ډیورنډ جرگه )) په نوم یوه نا دولتي اداره چلوي ؛ دیادې پېښې نه پس چې دامریکا رسنیو دهغه سره تماس ونیولونوهغه وویل چې زمادځوی ددې عمل تړاو دې داسلام سره نه ورکول کېږي ؛ زماځوی به چې ددوه تنانوپه خپل منځ کې فحش حرکات ولیدل سخت به په قهرشو اوغصه به یې له حده ورواوښته ؛ هغه دهمجنس بازانو نه سخته کرکه لرله ؛ خوځه دهغه له داسې ارادو، نه وم خبراونه مې گومان کولوچې هغه به گینې دا ډول عکس العمل هم ښکاره کړي ،،

سره له دې چې دعمر متین پلار صدیق متین په خپلوڅرگندونوکې دادخپل ځوی شخصي عمل وگڼلواو په وازه خوله یې وویل چې دامریکامېشتو مسلمانانوسره دې ددې عمل دتړاو ورکولوهڅې نه کېږي خودامریکا رسنیو ورته هیڅ ارزښت ورنکړ اوتل چې دداسې پېښوپرمهال داسلام اومسلمانانو پرضد دتبلیغاتوبازارگرم وي داځل هم هماغسې گرم و .

نړیوالې رسنۍ عموماً اوپه ځانگړي ډول امریکایې رسنۍ دامریکایې سیاستوالو اوجاسوسو شبکولپاره هغه کامیابه وسیله ده چې په ډېرې اسانۍ پرې تیکس ورکونکي عام امریکایان غولوي .

اواسلام دښمني بیادامریکایې رسنیوترټولوکامیابه وسله ده .

په امریکاکې که دکوم نامسلمان په لاس دعامو انسانانودوژلوډېره ستره خونړۍ پېښه هم رامنځته شي په امریکایې رسنیوکې هغه پېښه یواځې هغه فردته منسوبولی شي اوپه پرلپسې

ډول داویل کېږي چې دده عمل باید دده دهېواد،ژبې ،رنګ ،قبیلې ،نسل اومذهب ته منسوب نه شي ، خوبرعکس که دکوم مسلمان په لاس په امریکاکې کومه داسې ډېره کوچنۍ پېښه هم رامنځته شي نوبیا ټول معیارات بدل شي ؛ دافعل بیا دیوفردعمل نه بلکې دټول عالم اسلام عمل ګڼل کېږي ؛ نسبت بیا اسلام ته کېږي ؛ اسلام مسئول ګڼل کېږي اوویل کېږي چې راډیکال اسلام دورانۍ ،تخریب اوانسان وژنې تعلیم ورکوي .

دامریکااوټول لویدیځ په رسنیوکې په مسلسل ډول داسې څه خپرېږي لکه چې په نړۍ کې ټول قتل عام دمسلمانانوپه لاس روان وي اواسلامي ټولنه له قتل وقتال ؛ ورانۍ اوتخریب پرته بل هیڅ نه پېژني .

په برتانې کې دجون په ۱٦مې نېټې دپارلمان غړې جوکاکس نومې ۴۱کلنه مېرمن چې ددولت دمخالف کارګرګوندسره یې تړاودرلود او ددوه وو کوچنیانو مور وه دهېوادپه شمالي برخې کې په ډېرې بې دردۍ په ګولیو غلبېل کړای شوه.

دنوموړې قاتل تامس مرنومې ۵۲ کلن تن ځای په ځای ونیول شواوکله چې په سبا قاضي ته وړاندې کړای شواوقاضي ترې دنوم پوښتنه وکړه نوده په لوړ آواز وویل : خائنانوته باید دمرګ سزا ورکړل شي ، ژوندۍ دې وي آزادي ،،

قاتل یاده مېرمن له څه امله خائنه بلله ؛ دآزادۍ نه یې هدف څه و اودامېرمن څرنګه دآزادۍ مخالفه ګڼله ؟

هو! قاتل نوموړې مېرمن یواځې له دې امله خائنه او دبرتانې دآزادۍ مخالفه وبلله او پدې جرم یې ووژله چې هغه په اروپایي اتحادکې دبرتانې دپاتې کېدلوطرفداره وه ؛ داروپایي اتحاد نه دبرتانې دویستلوسخته مخالفه وه ؛ دایې دخپل هېواد دوقار، اقتصاد اوراتلونکو نسلونودمستقبل خلاف کارګڼلو خو دډېرونوروبرتانویانوپه څېربرعکس دقاتل رایه داوه چې باید ژرترژره برتانیه داروپایي اتحادنه راووځي ؛ په اروپایي اتحادکې خپل رکنیت ختم کړي ؛ داهېوادچې په اروپایي اتحادکې څومره زیات پاتې کېږي هغومره به ورته دافریقا اومنځنۍ ختیځ نه دبې کوره شویو مهاجرینوراتلل زیاتېږي چې دا پر اقتصاد دفشار، په نسل کې درنګارنګۍ اوپه برتانې کې دمسلمانانو ددومره ډېروالي سبب ګرځي چې له امله به یې دانګلیس ولس خپل شکل اوصورت له منځه ولاړشي اوزموږ پرتهذیب اوتمدن به یې اغېزې زیاتې شي.

انګرېزان په ډېر فخر دا دعوی کوي چې په هېواد کې یې سیاسي زغم اوتحمل بې ساري دی ؛ دمتضادوسیاسي افکارو شتون اوپه سوله ایز ډول یې اشاعت دخپل سیاسي نظام لویه ځانګړنه ګڼي خو دانګرېزانو په همدې برتانې کې دسیاسي نه زغم داسې یوه پېښه رامنځته کېږي چې له امله یې یوه دپارلمان غړې بې ګناه مېرمن دقتل سره مخامخ کېږي اوهغه هم دکوم مسلمان یابرتانې ته دبهرنه دراغلي نامسلمان په لاس نه بلکې دهغه سپین پوستي انګرېز په لاس چې دبرتانې اصل اوسېدونکی دی اوداهېوادیې دپلرونو اونیکونوټاټوبی دی .

که داپېښه دکوم برتانوي مسلمان په لاس رامنځته شوی وای که څه هم دسیاسي مخالفت په نتیجه کې وای دابه اسلامي تروریزم ګڼل کېدای اودبرتانې اوامریکا په شمول به دلویدیځ ټولورسنیو داسلام اومسلمانانو دبدنامولو لپاره شپه او ورځ یوه کړی وای خوچې دترور داپېښه دسور انګرېز په لاس رامنځته شوی نوپه یوصورت دادتروریزم پېښه نه ګڼل کېږي اونه یې هم برتانوي چاپېریال مسئول بلل کېږي ؟!

داسلام اومسلمانانوپرضد ددې منفي تبلیغاتو پایله داشي چې په امریکااو نور لویدیځ کې دمسلمان هرڅه ته دشک په نظرکتل کېږي ؛ دمسلمانانوپرده ، ږیره ، لباس ، شکل صورت ، عبادت ، حرکت ، ناسته ولاړه اوحتی عبادتخانې دخلکوپه نظرونوکې مشکوکې کړای شي چې له امله یې په کارځایونو، تم ځایونو، مارکېټونو، هوایي ډګرونواودفترونوکې

هرمسلمان دګرځنده وحشت اودهشت نښه بلل کېږي اوهرڅوک ترې ځان ساتي.

چې داولیندېو پېښې ته بېرته راشونو داسې ښکاري چې دې پېښې ټول لویدیځ لړزولی دی؛ کابوټولولویدیځوالو مشرانو داولیندېودا حمله په سختوټکو غندلې ده او ویلي یې دي چې دې غمجنې واقعې دډېرې صدمې سره مخامخ کړیدي اوپدې سخت حالت کې داولیندېو اودهمجنس بازانودټولنې سره اوږه په اوږه ولاړ دي ،،

اودامریکا تورپوستي ولسمشربارک اوباما خوددې پېښې په نتیجه کې پر مړوشویوامریکایانودمکرنه ډکې اوښکې توی کړې اورسنیوته یې دڅرګندونو پرمهال وویل : امریکایان د تکلیف اوظلم پدې حالت کې سره یوموټي دي ؛ دولت دخپل ولس دساتنې پوخ عزم لري اوموږبه اجازه ورنکړوچې امریکا دجنګ ډګر وګرځي ،،

دامریکا دولسمشر همدې څرګندونو کې که فکراوغوروشي نوترې په ډېرې اسانۍ په نړۍ کې دجنګونو، ورانیوو اوانساني قتل عام اصل سبب اود امریکا اونورلویدیځ پالیسي روښانه کېږي .

دامریکا اونورلویدیځ پالیسي همداده چې په نړۍ کې دې خامخا جنګونه روان وي خوددوئ دخاورونه لرې ؛ ددوئ هېوادونوکې دې امن وي ؛ ددوئ ښارونه دې ودان وي ؛ بازارونه او مارکېټونه دې یې آباد وي ؛ بچې دې یې په اطمینان ښوونځیوکې درسونه وایې او په پارکونوکې دې تفریح ګانې کوي ، دعیاشۍ اوفحاشۍ کلبونوکې دې یې فحاشي اوعیاشي روانه وي ، اقتصادونه دې یې وده کوي ؛ صنعت اوتجارت دې یې روان وي په فابریکو کې دې یې ښې ډېرې وسلې اوبمونه جوړېږي اودازموینې او خرڅلاو لپاره دې یې په اسلامي نړۍ جنګونه مسلط کولای شي نو بیا خیردی که اسلامي خاورې دلسګونو کلونولپاره دجنګونو په ډګر بدلېږي اوپه یویواسلامي هېواد کې په ملیونونومسلمانان وژل کېږي .

همدادامریکااونورلویدیځ خواهش دی ؛ همدایې پلان دی ؛ لګیا دي دهمدې پلان دعملي کولوپه کوښښونو کې اخته دي اوګومان کوي چې پلانونه به یې همداسې په کامیابۍ عملي کېږي اودوئ به تل په خپلوهېوادونوکې دامن شپې ورځې تېروي چې دایې ډېرلوی حماقت دی .

کوم زبرځواک چې دامن په نوم په ټولې نړۍ کې تروریزم خپورکړیدی هغه به پخپله له اغېزو څنګه خوندي پاتې شي ؟ دهرعمل په نتیجه کې دعکس العمل راښکاره کېدل دقدرت نه بدلېدونکی قانون دی ؛ دهغومسلمانوځوانانوله لورې چې په لویدیځ کې پیداشوي اوراسترشوي دلندن بمي چاودنې ، په هسپانیه کې حملې ، د پاریس بمي بریدونه ، په برسلزکې بمي حملې اوپه امریکا کې په لویه پیمانه دبدامنۍ اوقتل پېښې دهمدې عکس العمل پیل دی او له آثارو اوقرائنوداسې ښکاري چې په امریکا اوټول لویدیځ کې دافکر په ډېرې تېزۍ خپرېدونکی دی .

دمسلمانوځوانانوعکس العمل هم دامریکا اونورلویدیځ لپاره ډېر مشکلات پیدا کولای شي اوپیداکړي یې دي خو دلویدیځ اوپه ځانګړې ډول دامریکا دتباهۍ اصل عامل خپل چاپېریال اوپدې چاپېریال کې زېږېدلي اوراسترشوي ځوانان دي .

تاسې وګورئ ! همجنس بازي چې یوغیرفطري عمل دی ؛ سلیم الفطرة ټول انسانان یې ردوي خو داچې په لویدیځ کې دفطرت نه بغاوت اوج ته رسېدلی دی نودغرب په زیاترو هېوادونوکې دهمجنس بازۍ دې له حده زیات قبیح عمل ته قانوني حیثیت ورکړل شوی چې د۲۰۱۵ په جون میاشت کې امریکا هم دهمدې هېوادونوپه قطارکې ورشامله شوه اوسترې محکمې یې اجازه ورکړه چې سړی دسړي سره اومېرمن دمېرمنې سره واده کولای شي څکه چې دادې هېواد داوسېدونکو خواهش اوغوښتنه ده.

دامریکااونورلویدیځ په بې قیدوبنده ازادچاپېریال کې راسترشوي ځوانان چې شپه او ورځ دجرمونونه ډک کلتورسره

عيارشوي دهالي وودفلمونه گوري نوځرنګه به ترې نه اغېزمن کېږي اوپه مزاج کې به يې فساد ولې نه راځي ؟

په ځوانانوکې ددې فلمونو داغېزو دخپرېدا له امله ماس شوټنګ اوس د امريکايي کلتورنه جداکېدونکي برخه ګرځېدلې ده ؛ يواځې په ۵مياشتواو ۱۲ورځو کې په امريکاکې دا ډول ۱۳۳ پېښې رامنځته شويدي .

ماس شوټنګ (Mass Shooting) هغه حملې ته ويل کېږي چې پکې له ټوپک نه کار واخستل شي اوپکې ګڼ تنان مړه اوټپيان شي ؛ په امريکا کې دماس شوټنګ اصطلاح دهغه بريد لپاره کارول کېږي چې پکې لږترلږه ۴تنان مړه يا ټپيان شي.

ستر بريدونه چې پکې درنه مرګ ژوبله رامنځته شي ورته د (Mass Suicide)

اصطلاح کارول کېږي؛ ماس شوټنګ خوهسې هم دامريکا دکلتورنه جدا کېدونکي برخه ګرځېدلې ده ؛ داسې ښکاري چې نوربه پکې دا دوهم قسم بريدونه هم رائج شي چې همدا به په امريکا کې دلويې تباهۍ سبب شي .

**اوس پوښتنه داده چې دنړۍ داسترزبرځواک به عبرت واخلي ؟ له خپلو بدوکړنوبه راوګرځي اوپه خپلوپاليسيوبه له سره غور وکړي ؟ نه ! هيڅکله هم نه !**




**دامريکاتاريخ ته که پام وکړو په ډېرې اسانۍ دا ويلی شوچې مزاج يې بدلېدونکی ندی ؛ غلطي اوخطامنل دامريکا په طبيعت کې نشته ؛ امريکا که څه هم ډېر سترګوزارونه وخوري عبرت نه اخلي اونه خپل ځان بدلوي ؛ دايې تاريخ دی ؛ همداسې به وي اوهمدا بد عادت به يې ان شاءالله دنابودۍ سبب شي .**

ديادونې وړده چې داولينډوډپېښې په اړه خودزياتروتحليلګرانو اوڅېړونکو رايه همداغه ده له کومې نه موچې پورته يادونه وکړه يانې دامريکا اونور لويديځ چاپېريال کې اخلاقي فساد اوج ته رسېدل اودمسلمانانو پرضد دامريکا دروان وحشت په مقابل کې دمسلمانوځوانانوعکس العمل.

خودځني خلکو تحليل بيا داسې دی چې دپورتني عامل ترڅنګ په پېښې کې دامريکا ددولت لاس لرل هم نه ردوي .

دوئ دا پوښتنه کوي چې دخپلوشومو اهدافو دترلاسه کولواو وړنه ددفاع په خاطر امريکا په ټولې نړۍ کې دخپلو جاسوسو شبکوجال خپورکړيدی نواول خودا دحيرانتيا خبره ده چې يوتن چې له درې کالو راهيسې دامريکا دفدرالي اداري دڅار لاندې وځرنګه له ځان سره دوسلې په ساتلواوکلب ته په وړلو وتوانېد ؟ بيا يې له حملې نه وړاندې پوليسوته ټيليفون هم وکړ خودکلب په امنيت ګومارل شوي پوليس نه ددې خطرنه خبرکړای شول اونه يې هغوئ په مخنيوي وتوانېدل ؟!

په امريکا اونورو لويديځو هېوادونوکې دداسې پېښې پرمهال دلسونه ترپنځلس دقيقوپورې امنيتي ځواکونه رارسېږي اوپه پوره مهارت حمله کونکی ژوندی نيسي يايې وژني خو دلته دومره تاخير ؟!

حمله کونکی لګيا وتر درې ساعتونوپورې يې قتل عام کولو ، نه فوځ راغلو ، نه کماندوځواکونه اونه هم دپرمختللو وسايلونه کارواخستل شوتردې چې درې ساعتونه تېر شول ښه په لويه پيمانه قتل عام وشوبيا ايله پوليس راغلل ؛ کلب ته ننوتل عمرمتين يې ښه په اسانه ووژلو؛ پدې وخت کې دې پوليسوته هيڅ ډول خطرنه ومتوجې ؛ نه کوم پوليس ووژل شو اونه ټپي شو؟!

سوال دادی چې داکار درې ساعته وراندې ولې نه کېدلو؟

داهم ډېره عجیبه وه چې پېښه لاختمه نه وه چې مجرم معلوم شوی و؛ دسخت دریځ تنظیم سره یې روابط هم ښوول شوي ووااوداهم نشرشول چې ایف بي آی یې له روابطوخبره وه اوده پخپله هم له حملې وړاندې پولیسوته ټلیفون کې دسخت دریځوسره دتړاولرلوخبره کړې وه.

دې ټولوخبرو ته په پام سره ځنې خلک گومان کوي چې دابه په نړۍ کې دمسلمانانوپرضد دخپل وحشت دلازیاتولو اوپه امریکا اوټول لویدیځ کې دمسلمانانو پرضد دکړې لا راتنگولوپه موخه د سي آی ای خپل پلان وي او ددې پلان دتطبیق لپاره دې لږ یازیات همجنس بازان قربان شوي وي؛ که دپنځوسوپرځای کلب ته راټول شوي ټول همجنسبازان مړه شوي وای دامریکاپرې څه؟ دانساني اقدارونه بې برخې دهمجنسبازانوپه نوم ددې خلکوژوند هسې هم له مرگه بدتروي؛ ددوئ په اړه دلویدیځوالو عمومي مفکوره ښه نده؛ دټولوپوهو، لویدیدیځوالو نظردادی چې دوئ پرټولنې توړداغ او اضافي پېټی وي اوله دوئ نه ټولنې ته هیڅ گټه نه رسېږي.

څه ددې ترځنگ چې دعمرمتین احساس ته دقدرپه نظر گورم اودعمر متین دارادوپه اړه شک کول ناسم بولم



ځکه چې دمسلمان دسرقرباني یواځې دنېک احساس له مخې کېدای شي نه دمادي گټويادچا دخوشالولولپاره.

خوڅه دا احتمال هم نه ردوم چې دامریکا جاسوسو شبکوبه دعمرمتین په ارادو دخبرېدونه پس نه یواځې داچې ددې ارادودعملي کېدوپه لارکې خنډ شوي نه وي بلکې کېدای شي چې ددې اداروځنې غړي دمسلمانانو په لباس اوصورت کې عمر متین ته رانږدې شوي وي؛ ورته یې همدا ځای په نښه کړی اودپروگرام په تطبیقېدوکې یې ورسره مرسته هم کړې وي.

که رښتیا هم داد امریکا دجاسوسو شبکو پلان وي نوداسمه ده چې ددولت له لورې دمسلمانانو پر ضد دجدي اقداماتو اوداسلام اومسلمانانوپه اړه دامریکایانو دعامه رایو دخرابولو لپاره به ترې سمدستي دیوې کامیابې وسیلې په توگه کارواخستل شي خوپه راتلونکي کې به دامریکا لپاره له ځانه سره نه جبرانېدونکي

تاوانونه ولري؛ پردولت به دامریکایي ولس په بې اعتمادۍ کې نورزیاتوالی هم راشي؛ دامریکایي دولت اوامریکایي امنیتي اداروضعف به هېوادوالو اونړۍ ته لاڅرگیزشي؛ داسلام اومسلمانانو دمظلومیت حالت کې به په مسلمانانوکې دخپل دین سره مینه زیاته اوخپل دین ته ډېر نږدې شي؛ دغرب دمسلمانانوخپل منځي وحدت اویووالی به لاډېره وده ومومي اودخپل ځان اودین نه ددفاع روحیه به پکې ځواکمنه اودجهاد احساس به پکې لاقوي شي؛ بیا به امریکا په خپلوټولو کړو پښېمانه وي خوپښېمانتیا به څه گټه نه ور رسوي.

اورلا تت دی، شدت یې دومره زیات ندی چې هرڅه لولپه کړي؛ اوس هم لاموکه ده چې فکر وکړای شي اوپه ټولې اسلامي نړۍ کې چې دظلم، وحشت، قتل عام، تخریب او ورانۍ کوم اور دامریکا په نوم لوی شیطان بل کړیدی دمړکولوهڅې یې وکړای شي او((ژوند وکړه اودژوند تېرولوحق نوروته ورکړه)) پراصل عمل وکړای شي گینې په ټولې اسلامي نړۍ کې ددې بل کړی شوي اورشغلې به ډېرژرترامریکا اودامریکا تراتحادي نړۍ ورخپرې شي بیا به یې دمړکولو ډېرې هڅې وشي خوپه مړکولوبه یې څوک ونه توانېږي.

# ترکومه سکوت!

قاري خالد

دکابل بې کفایته، مزدور او معیوب رژیم که څه هم په فساد کې لومړی مقام لري؛ همچنان دظلم او بربریت له امله یې هم په نړۍ کې سیال نه موندل کیږي خو له بده مرغه چې رسنۍ یې په اړه یو مخ خاموش دي

رسنۍ دملت بړغ بلل کیږي اما په گران هیواد کې رسنۍ د اشغال په منگولو کې ښکېل دي او تل یې له ملته حقایق پټ کړي او په سترگو کې یې خاورې ور اچولې

دلته که دحکومت په زړه حمله کیږي او دحکومت بلها عسکر، مهم رازونه او قومندان له منځه پکې وړل کیږي؛ رسنۍ دملت پام پر بلې خوا د اړولو کوښښ کوي، دحکومتي ارگانونو دننه دعوامو دشهادت درواغجن راپورونه، دجعلي انځورونو سره خپروي او دحکومت له بې کفایتي دملت پام بلې خوا ته اړوي

په حکومت کې داخل ځینې والیان راجاگان دي؛ هدفي وژنې، اختطافونه، دمځکو غصب او په ملت وحشت یې دژوند معمول دی مگر ارگ مشر یې په اړه سپڼ هم نشي کولی، ان تر دې چې پخپلو ولایاتو کې شخصي زندانونه هم لري او ترشاه یې نېغ پر نېغه خارجي استخبارات ولاړ دي او دهغوی په اشارو ناځي

د اردو دا حال دی چې هر ظلم او بربریت ددوی پر مټو دخارجي او داخلي بادارانو له لورې ترسره کیږي؛ اردو دزورواکانو په لاسو کې لوبیږي او د ولس دوژلو لپاره یې روحیات غښتلي ساتل کیږي

که چېرې طالب په کومه پوسته ډز کوي، د اردو لخوا ټول کلي په هاوانونو ویشتل کیږي، او پرته له کومې پوښتنې - گروپړنې د اردو وحشت ته توجیهات لټول کیږي

که سوال دا وي چې طالب ولې دکلیو له منځه په حکومتي عسکرو ډزې کوي؛ نو حکومتي عسکر ولې دکلیو دننه تاسیسات جوړوي؟

ولس کومه خوا ولاړ شي؟

طالب هم حکومت دی او دهمدې ولس بچي او د ولس له غېږې خپل مقاومت پر مخ وړي

هره میاشت تقریبا سلگونه هیوادوال د اردو په ړندو توپونو او دناټو پر وحشیانه بمباریو په شهادت رسول کیږي. ودونه، مساجد، روغتونونه او کورونه په فاسفورسو سوځول کیږي، له پوهنتونونو محصلین ویستل کیږي او بیا په مبهمه توگه په قتل رسیږي، دهیواد په هر گوټ کې صحرایي محکمې روزمره معمول گرځېدلې، والي له رئیسه ستر غل دی او رئیس له وزیره، دوزیر دشتمنۍ او فساد په اړه خو پوښتنه امکان نلري

یو څوک یوه ورځ دملیونو ډالرو پر غبن تورنول کیږي او بله ورځ هماغه مفسد شخص دجمهوري ریاست سلاکار ټاکل کیږي

دسولې او هوساینې کارونه پر ټپه ولاړ دي اما دمخالفینو پر خلاف دتبلیغاتو لپاره په سوشل میډیا کې پاڼې سپانسر-کیږي، لیکوالانو ته یې میاشتنۍ ډالرې معاشات ورکول کیږي او په گمراه کن او درواغجنو تبلیغاتو ولس غولول کیږي

موږ سولې ته اړ یو؛ غوښتنه مو سوله ده، نه دا چې خپل مخالفین په بې فایدې تبلیغاتو وښکنځو او دلیکوالانو دمعاشاتو بوج یې، ددې خوار ولس له کمې تومې بودیجې وکاږو

کومې پیسې چې پر دغو بېهوده تبلیغاتو مصرفیږي که پر همدې پیسو په اخلاص سره دسولې لپاره کار وکړای شي، باوري یو چې دسولې په ډگر کې به هیلمن پرمختگ وکړو

لنډه دا چې دموجوده معیوب او بې کفایته نظام پر خلاف سکوت، روانه غمیزه لا اوږدوي او جگړه تاوده ساتي

ددې نظام پر خلاف بړغ پورته کول، که پر قلم وي که پر ټوپک، دهر افغان ملي او اسلامي وجیبه ده

راروان نسل به دخپلو پلرونو ددې مضر- سکوت اضرار پخپلو وینو جبیره کوي خو جبیره به یې نشي کړای او تاریخ به یې دداسې یو قوم پر نوم له ځانه سره ثبت کړي چې سره دپوهې دظلم، بې کفایتۍ، بربریت او وحشت پر خلاف مړه غوږونه پراته ول چې په نتیجه کې یې آئنده نسل کاملا غلام او بلواک ژوند ته وسپاره

دخپلواک، ازاد او اسلامي افغانستان پر هیله !!

# افغانستان ولې نا امنه هیـــواد دی؟!!

عبید تنویر

په دې ورستیو کې یوې نړیـوالي موسسي ، افغانستان په نـړی کـې هغـه څلورم هیواد بللـی چـې لاهـم ناامنـه اوددې وړ نده چـې غربـي او امریکـایي اتباع هلته له ویرې اوبیم پرتـه سفر وکړي او په ډاډه زړه وگرزي

دسولي او جنګ په نامـه موسسـي په خپل کلني راپورکي دنـړی د(۱٦۰) هیوادونو امنیتي چاري او حالات څیړلي ، چـې سـوریه ، عـراق ، سـوډان او افغانسـتان یـې لاهـم هغـه هیوادونـه حساب کړي چې دجگړو لـه املـه یـې سیمي اوښارونه سخت ناارامه دي ، خو اسـترلیا او ایسـلند چـې دواړه اروپـایي هیوادونه دي ، دنورو هیوادو نو په پرتله یې ، موسسه پرامنه بولي .

پورته څیړنه یوې غربي موسسي ترسـره کـړي ، غربـي او امریکـایي بنسـتونه اوسیاسـتوال معمــولا هغــه هیوادونه په خپل اند تـل ناامنـه او بـې ثباته گڼي چې هلته غربي او امریکایي اتباعو ته دسفر، تګ و راتګ پـه مهال ستونزې وي اویاهم پـه هغـو هیوادونـو کـې دامریکا او غرب مهمـي کټـي او منافع تر تهدید اوخطر لاندي وي ، چـې دهمدغه ډوله راپورونواوڅیړونو په پلمه غواړي هلتـه خپـل پـوځي او استعماري دخالت توجیه او خپل اشغال اوږد کړي .

شک نشته چې په سوریه ، عـراق ، سوډان او افغانستان کې نـاامني شـته ، خو پوښتنه داده چـې ددغـو نـاامنیو پـه ایجاد او جـاري سـاتلو کـې دچـا لاس او کټي دي اوولې نه پرې ښودل کیـږي چې په یـادو هیوادونـو کـې امـن وزري وغوړوي او ملتونه سره دورور ګلوی په فضـا کـې ووسـي او دخپلـې خوښـې نظامونه ولري ؟

امریکـا او غربیـانو پـه کـوم دلیل دافغانستان او عراق دولسونو خود ارادیت وځاپه او ملي خپلواکی یـې ترسـتوني راونیوله ، په لکونو اشغالګر پوځیان یـې له بې رحمـه او اسـلام دښـمنه وسـلو او جنګـي جبخـانو هلتــه ولیــږل ، ولاړ اومسلط رژیمونـه یـې راونـړول اودهغـو پرګنو په وژلو ، نیولو او کړولو یې پیـل وکړ چې هغوئ اشغالګرو تـه سـر نـه ټیټاوه او دخپلـو ارزښـتونو دګټلو داعیـه یې لرله

امریکایـان دې افغانـانو تـه ووایـي چـې دتیـرو ۱۵ کلونـو پـه اوږدو کـې امریکا اوغرب هغه خلک پردوئ مسلط او واکمن نکـړل چـې د ٤ لسیزو روان ناورین اصلي مسببین او عاملین همدوئ وو اودي.

کمونیســـتان ، کـلــم جـــم او دافغانستان دمقدس جهاد دپاکو هیلـو او ارمانونو پلورنکي اوبربادونکي جهاد نمـا ډلـي او تپلـي هغـه څـوک دي ، چـې امریکایانو دخپلو جاسوسانو ، غلامـانو او جلادانو په توګـه اسـتخدام اودبرمیال مجاهد ولس دوژلو ، کړولو او لوټلو لپاره وګمارل !!!!

امریکایـــان او غربیـــان دې هغــه دلائیـل او شـواهد وړانـدي کـړي چـې دکومي پلمي په وجـه یـې افغانسـتان اشغال اوپه پلمه یې دوه نیم لکه مظلـوم افغانان له تیغه تیر او یـونیم میلون یـې شکنجه وکړځول !!

ایا افغانان دامریکا دیولسم ستامبر په پیښـه کومـه دخـل درلـود او حتـی دالقاعده په اړه امریکا کوم داسـې کـره ثبوت پیش کړی شو چې دنوموړې ډلي دخالت پکې ثابت کړي؟

په عراق کې هغه زروي وسـلي او اتومي سرګلولي څه شـوي ، چـې لـه امله یې دصدام حسین په مشرۍ دولت را وپرځول شو، دعراق جوړ ، ودان رژیـم یـې دړې وړې ، تـولي زیربنـاوي یـې

نسکوري اودعربو ددغه بدایه هیواد شتمنی یې چور او چپاول کړي اوبیا یې عملا هلته دسني او شیعه په نوم دنسل وژني داسې یو اور بل او یو بل یې په داسې دښمنی اخته کړل چې دانتقام خبره به یې ددوئ نسلونسلونو ته پاتې وي

په سوریه کې چې کوم محشر جوړ دی ، دداعش ، سني او شیعه په نوم کومه تباهي ترسره او یاروانه ده ، ایا ددغو ټولو ترشا دامریکا لاس نشته او یا امریکا نده چې ځینو هیوادونو ته په لوی لاس زمینه برابروي چې هلته په جګړو کې ځان ورښکیل کړي ،ترڅو هغه سیمې داور سره بټۍ وي او امریکا ترینه په همدغسې حالت کې شیطاني کټه او استفاده وکړي؟

مونږ دسولې او جنګ په نامه موسسې ته وایو ، داخبره خو لکه لمر هرچاته واضحه او څرګنده ده چې په سوریه ، عراق او افغانستان کې جنګ روان اوله یوې نه بلې ورځې ته دغه اور تیزیږي او په نتیجه کې ستاسې په اند نوموړی هیوادونه ناامنه او بې ثباته سیمې او هیوادونو دي ، خو که په رښتیا تاسې یک جانبه او یک رخه قضاوت نلري ، داخبره ولې نه راپلټۍ چې ددغو جګړو شاته اصلي لاس دچا ده او ولې امریکا ځانته داحق ورکوي چې ددغو هیوادونو په مسایلو کې مستقیما لاس ولري ، هلته دخپلو فوځیانو شتون او دپوځي عملیاتو جاري ساتلو ته پلمې ولټوي .

څرګنده او ښکاره خبره ده چې افغانستان او نور هغه هیوادونه چې دسولې او جنګ موسسه یې ناامنه اوبې ثباته بولي، هلته کوم خپل منځي جنګ ندی روان او نه دقدرت په سر مبارزه ده ، بلکې داورتنور اولمبې پکې امریکا بلې او تودې ساتلې اودیوې لحظې لپاره هم هغه ولسونه دارام ساه اخستلو ته نه پریږدي.

چې لنډ مثال یې افغانستان دی، له یوې نه بلې ورځې ته امریکا دافغانستان دجنګ دتودولو لپاره پلانونه اوبهانې کوري ،کله وایي ، دومره زره نوري قواوې به افغانستان ته وروليږي، کله وایي ددرون بریدونه به زیات کړي ، کله وایي سیمه ډیره مهمه ده که دوئ ترینه لاس واخلي نو دامریکا اوږدمهالي کټې به له منځه ولاړې شي او داسې نور.....

نو خلاصه ویلای شو چې ترڅو دامریکا ژامه ور ماته او دښکیلاکیت له برجه را ونه غورځول شي، هغه هیوادونو چې اوس ځانونه دامریکا متحدین بولي او په اصطلاح دترهګرۍ په جنګ کې ورسره غاړه وړي ، دغه یو به هم ورنه په کرار شپه تیره نکړي، په نوبت اوتدریج سره به لدوئ سره هم هغه لوبه او معامله کوي، لکه له افغانستان ، عراق او سوریې سره یې چې وکړه ، نو پرځای غوښتنه او اړتیا داده چې نړۍ او دسیمې هیوادونه په کډه دامریکا په خلاف په متحده او بې ویرې ستراتیژۍ غور وکړي او که نور نه وي، داسلامي امارت دمبارزې تائید او تعاون خو وکړي !!!

## تربیه

د هند پخوانی ولسمشر عبدالکلام ازاد وایي. چې ماشوم وم. یوه شپه مې مور د پلار مخې ته ډوډۍ کېښوده. له پلار مې ښښنه وغوښته چې نن ډوډۍ لږ سوې ده. دی وایي چې هغه شپه نورې کومې خبرې وشوې له یاده مې وتلې مګر د پلار به مې هیڅکله دا یوه خبره له یاده ونوځي چې مور ته مې وویل:

خوږې زما سوې ډوډۍ خوښېږي. په سوچ کې شوم چې ایا د پلار مې رښتیا سوې ډوډۍ خوښېږي؟ کله چې بسترې ته تلم نو پلار نه مې پوښتنه وکړه چې ستا رښتیا سوې ډوډۍ خوښېږي؟ پلار مې په غېږ کې ونیولم را ته یې کړه چې زویه: نن دې ټوله ورځ مور سخت کار کړی وو او د شپې یې مونږ ته ډوډۍ هم تیاره کړه نوسوې ډوډۍ انسان دومره نه ځوروي لکه ترخه خبره او زیاته یې کړه چې انسان هیڅکله هم مکمل نه دی. یو بل باید تېروتنو سره ومنو او خوشاله ژوند وکړو.

# برتانیا

## او اروپايي ټولنه !!

ع - ع

دراپورونو له مخي ورمه ورځ دبرتانیا څه باندي ۴۶ نیم میلون وګړو دیوې ټول پوښتني په ترڅ کې پریکړه وکړه چې نوربايد برتانیا په اروپایي ټولني کې خپل عضویت ته دپای ټکی کیږدي او ترینه ووځي .

تراوسه لا داخبره جوته نده چې داروپا له غړیتوب څخه دوتلولړۍ به په همدې ځای ودریږي اوکه به داتحادیي نور غړي هیوادونه هم چې خپل عضویت په اروپا کې په زیان او تاوان بولي دبرتانیي په څیر قدم واخلي.

چې نیږدي او نغد مثال یې دیونان هیواد دی ، یونان له څو کلونو راهیسي- په دي لټه کې دی چې له اروپایي ټولني څخه ځان وباسي ، هغه وایي په اروپا ټولنه کې یې لدې زیات پاتي کیدل اقتصادي او سیاسي زیان ده، ځکه داتحادیي غړیتوب یونان له هرډول پرمختګ څخه راګرځولی.

په هرحال ، اروپایي اتحادیه هغه تشکل اوبنیاددی چې داروپاپه براعظم کې یې د۲۸ هیوادونو په عضویت جوړښت وموند ، مهم هدف یې داوو ، ترڅو په نړۍ کې دیوه لوی اقتصادي ، پوځي ، سیاسي او هراړخیز قوت په توګه موجودیت ولري ، تردې پوري چې غړو هیوادونو ترخپل منځه دپولو او سرحدونو محدودیت له منځه یوړ ، پیسي- یې سره ګډې اودیورو په نوم کړلي ، دهر هیواد پوځ یې داروپایي ټولني دمشترکو ګټو او منافعو تابع داری ته چمتو وګرزاوه ، دیوه فرهنګ رایجولو ته یې قوانین جوړکړل اوداسي نور.......

خو اوس دبرتانیا ولس له ۴۳ کلنی عضویت ورسته تصمیم ونیوه چې نور باید نوموړي غړیتوب ته دپای ټکی کیښودل شي ، که څه هم دبرتانیا حکومت دقانون له مخي ملزم ندی چې ارومرو به دولس دغه ډول غوښتنی ته غاړه ږدي ، بلکي په مهمو مسایلو کې یې تصمیم نیول خپل دی ، خو چون ورستی ( ریفرندم ) دبرتانیي درومبی وزیر په خوښه ترسره شو او له ټاکل کیدو وراندي یې له خپل ولس سره ژمنه کړې وه چې که کامیاب شو نو ارومرو به له اروپاسره دبرتانیا دعضویت په باب نظرپوښتنه ترسره کوي او څه پریکړه یې چې وکړه هغه به مني

همدا وجه وه چې دبرتانیا ړومبي دنظرپوښتني له نتیجي سره سم اعلان وکړ چې له اروپا نه به برتانیا خارجوي او هم به په څو راتلونکو میاشتو کې له خپلي دندي استعفا ورکوي .

دچارو ماهرین وایي ، داروپایي اتحادیي لوی عیب چې اوس دغړو هیوادونو دنارضایتی او تردد سبب جوړشوی اوممکن دبرتانیي په څیر نورو هیوادونو ته هم له ټولني څخه دوتلو زمینه برابره کړي هغه له نورو هیوادونو سره داړیکو په ساتلو کې دغړو هیوادونو عدم استقلالیت دی ، په دې معنا که اروپایي ټولنه له یوه هیواد سره دروابطو دقطع کولو پریکړه وکړي ، نو ټول غړي هیوادونه مجبوردي چې له هغه هیواد سره هرډول اړیکي وشلوي

دمثال په ډول له روسیي سره داروپا دلګیدلو بندیزونو له وجې دټولني زیاتره غړو هیوادونو په اقتصادي لحاظ درانه زیانونه ولیدل ، په خاص ډول برتانیي ، جرمني او فرانسي ، ځکه هر یوه له روسیي سره هرکال دلسهاوو میلیاردونو ډالرو په ارزښت راکړه ورکړه درلوده خو داوکراین په سر په شخړه کې چې دامریکا لاس وهنه پکې بارزه وه دټولني له لوري داقتصادي اوسیاسي بندیزونو په اعمال غړو هیوادو ته کلکه صدمه ورسیده .

دټولني بل نقص چې غړي هیوادونه یې سخت ناراضه او مایوسه کړي ، هغه په اروپایي ټولني باندي ، دامریکا دسیاست غوړیدلی سیوری دی ،کتونکي وایي چې اروپا دامریکا دګټواو منافعو

دخوندی کولو لپاره دیوه حصاري چتر په څیر رول لوبوي ، زیاتره هغه جګړې چې داروپا ورسره هیڅ تعلق اوربط هم نه و ، خو امریکایانو هغه جګړه داروپایي اتحادي غاړې ته ورغورځولي دي ، په دې مفهوم چې یا اتحادیه مخامخ پکې ښکیل ده او پوځیان یې جنګ کوي او یایې ملاماتونکوي لګښتونه اواخراجات برداشت کوي ، لکه دعراق ، لیبیا ، سوریې او افغانستان روان جنګونه ، چې که داروپا خپل اختیار وای ، نو هیڅکله به یې هم په دغو هیوادونو کې دجګړو په حق کې په دومره جدیت او سرعت برخه نه وای اخیستې.

**په اروپایي اتحادیه کې له برتانیا ورسته دامریکا ځای!**

برتانیا هغه هیواد وو چې امریکا په اروپایي ټولنې کې دخپل ترټولو متحد هیواد په ډول پرې حساب کاوه ، ځکه برتانیا یواځیني هیوادوو چې دامریکا پریکړې او فرمایشات یې په اروپایي پارلمان او نورو جرګګیو کې مخامخ مطرح کول او کلکه دفاع به یې ترینه کوله ، امریکاله ډیره وخته زیاورویست چې برتانیا له اروپا څخه دوتلو له تصمیم نه وګرځوي، ځکه امریکا فکرکوي چې له برتانیا پرته اروپا ممکن نور خپل جوړښت او قوت له لاسه ورکړي اویا دامریکا هغه خبره چې پخوا به دبرتانیا په وجود کې هلته چلیدله او ارزښت به یې درلود نور هغه ځای او مقام ونلري .

**له اروپا څخه دبرتانیا دوتلو پایلې دواړو لوروته !**

**۱- دانګلستان تجزیه :** انګلستان چې له څلورو هیوادونو(انګلستان، ولز، ایرلند شمالي او اسکاټلند څخه متشکل اوعبارت دی ،اسکاټلندبیا دبرتانیا په ترکیب کې هغه محلي هیواد دی چې نه غواړي له اروپایي ټولنې څخه برتانیا ووځي ، همدغه علت دی چې داسکاټلند رومبی وزیر نیکولا استورجن په دې تصمیم کې دی کچیرې برتانیا له اروپا څخه خارجیږي ، دغسې- یو ریفرنډم له برتانیې څخه دسکاټلند دوتلو لپاره هم ضرور ده

**۲. نړیوال سیاست :** په نړیوال میدان کې برتانیه او فرانسه هغه دوه هیوادونه وو چې په امنیت شورا کې یې دایمي غړیتوب درلود او دټولې اروپا له ګټو او هیوادونو څخه به یې دفاع او نمایندګي کوله ، دبرتانیا له ورستی پریکړې سره به اروپا نور په نړیوالو مسایلو کې په هغومره قوت اهمیت او ارزښت ونلري

**۳. دبرتانیې داخلي یووالي او امنیت:** لدې ورسته ممکن دبرتانیې دولس ترمنځ یوه همغږي نه وي موجوده ، ځکه ۵۲ فیصده خلکو له اروپا څخه دوتلو رایه ورکړې او ۴۸ فیصده برتانویانو یې مخالفت کړی ، که لدې ورسته دبرتانیې اقتصاد لږ زیان او جټکه هم ویني نو دبرتانویانو ترمنځ به دنظر تشنج رامنځته کوي، دموافقینو او مخالفینو شکل به اختیاروي او یو بل به دناسم وضعیت مسؤل بولي .

دورستی نظرسنجی له مخې هغه برتانویان چې په اروپا کې دپاته کیدا په لوري ول ، وایي چې له اروپا څخه دوتلو په صورت کې به انګلستان په نړیوالو مسایلو کې له خپل محوري رول څخه راو لویږي ، خو په مقابل کې یې هغه برتانویان چې له اروپا څخه دوتلو په حق کې دي ، هغوئ وایی چې له اروپا څخه په جلاکیدو به برتانیادتجارت او سیاست په برخه کې استقلال پیداکړي او لدې ورسته به خپل تصمیم په خپله نیسي .

دبرتانیې رومبی وزیر کامرون هم دنورو یو لړ دلایلو سربیره ،له اروپا نه دوتلو ترټولو مهمه موضوع دمهاجرت بیانوي چې په اروپایي ټولنه کې دمهاجرت په اړه داسې قوانین وضع او منل شوي چې دهرغړي هیواد یو وګړی که وغواړي برتانیا ته راشي پرته له کوم قید اوشرطه راتلای شي او دلته برتانیا بایددکار او اوسیدا لپاره لکه دبرتانیې دیوه وګړي په څیرشغل او حقوق ورکړي ، چې دا کار دبرتانویانو لپاره دمنلو وړ خبره نده او دخپل اقتصاد او پرمختګ لپاره یې په زیان بولي .

دغه راز دبرتانیې یو سیاستوال («استیو هیلتون» ) په دې باور دی چې برتانویان خپل هیواد له اروپاسره یوه پیوسته جزیره شمیري نه داروپا دیوه غړي په صفت، نوځکه داخبره ورته درنه تماميږي چې داروپا په سطحه دې تصمیم فرانسه او المان ونیسه او برتانیه دې دهغه پیروي وکړي ،هغه وایی خپله برتانویان متل لري چې هغه بدبختي چې خپله مونږ یې وغواړو، هغه له هغه خوشبختي څخه ډیره بهتره ده چې فرانسه یې هغوئ ته رالیږي!!

# شرم است که معاش امام مسجد ازپول یهود و نصارا پرداخته شود

نویسنده: صدرالدین عینی

خبر: روزی در یکی از مساجد شهر تالقان مرکز ولایت تخار نماز صبح را ادا نمودم. نا آگاه چند تن از محاسن سفیدان و اهالی مسجد دورهم جمع شده در پاسخ به پیش نهاد وزارت حج و اوقاف مبنی بر رسمی سازی بست ائمه مساجد در شهر تالقان تبصره نمودند. یکی از حاضرین که دلش از غیرت ایمانی می تپید با بسیار تأسف گفت: "ما سال ها با شکم گرسنه، نان جو و جواری در بدترین شرایط مدرسه ها داشتیم علما و طالبان دینی را نان می دادیم و مصارف شان را تأمین می کردیم، امروز ما ره چه شده است که ملا امام مسجد خود را معاش داده نتوانیم، و دولتی که نصف از بودجه عادی آن را یهود و نصارا می دهد، به الله قسم که پشت همه ای این راجستر نمودن مساجد و امامان این یک دسیسه است، این ها با دالر شان دختران ما را از خانه کشیدند، مردم را بی ستر نمودند، ارزش های اسلامی را دور کردند و صدها فساد آوردند و حالا می خواهند منبر و محراب مسجد را هم در کنترول خود بگیرند. شرم است که معاش امام ما از پول یهود و نصارا داده شود. همگی می دانند که وقعیت این دولت چگونه است، این پلان خارجی هاست، این را اجازه ندهید که ننگ است و روزی نسل آینده خواهد گفت: اجداد ما چقدر بی غیرت بودند که معاش امام شان را یهود ونصارا می داد..."

شخصی دیگری از حاضرین مجلس گفت: "به الله قسم راست می گویی؛ ما اجازه نمی دهیم که این دولت نابکار ملاهای تراشیدگی خود را بیاورد..."

یکی دیگر از حاضرین این گونه بیان داشت: "من خانه ندارم و در این محله کرایه نشین هستم، هر قدر پول بخواهید می دهم، اما این کار را اجازه ندهید. شما محاسن سفیدان ما تجربه دارید، گرمی و سردی زنده گی را دیده اید، دسیسه ها را می دانید، به جوان ها بفهمانید که عاقبت این کار خوب نیست. این دولت می خواهد کسی را بیاورد که مطابق میل خودش به مردم تبلیغ کند، نه موافق گفته الله و رسول صلی الله علیه وسلم!"

به همین گونه اشخاصی دیگر هم به این قضیه به دید شک نگریسته سخنانی ازین قبیل ابراز نمودند: "در دراز مدت این یک پروسه خطرناک است، از همین حالا موضوع تبلیغ جمعه امام مسجد را دولت تعیین می کند، اگر معاش بدهند چه خواهند کرد. این ها می خواهند منبر را مثل رسانه ها در اختیار خودشان داشته باشند. دولت می خواهد کسی عیبش را افشا نکند. می خواهد جلو سخن حق را بگیرد و..."

## تبصره:

این که پرداختن معاش امام مساجد توسط حکومت وحدت ملی جان کری چه حکم دارد، رد و یا قبول این موضوع چه ارزش دارد؟ روی آن بحث نمی کنم، جالب و قابل تعمق این است که با وجود دسیسه ها و برنامه های شبانه روزی دشمنان اسلام برای اغوا نمودن افکار عامه، هنوز هم در این امت خیر هست؛ هنوز هم غیرت ایمانی امت در جوش است و ان شاء الله همیشه باقی خواهد ماند. علی الرغم تبلیغات رسانه ها و ملاهای درباری هنوز این امت می داند که این نظام بر خواسته از عقیده آنان نیست. بالای برنامه های آن شک دارند و به هر اقدام اش به دیده شک و دسیسه علیه اسلام و مسلمانان می بینند؛ چون: بارها دیده و تجربه کرده اند که این چنین نظام ها هیچ گاه برای دفاع از اسلام و امت مسلمه نمی باشند.

از سوی دیگر این موضوع بیان گر این است که امریکا و هم کارانش با وجود برنامه های متنوع و مصارف گزاف، طی پانزده سال نتوانستند اعتماد مردم را نسبت به حکومت دست نشانده خود جلب نمایند. اکنون که در وضعیت بدتری قرار دارند، بعید است که دست آوردی داشته باشند. برعکس ما بیداری فکری و آینده این امت خوش بین هستیم، این امت هیچ گاهی به شکل جمعی فریب نخواهد خورد، درست همان گونه که رسول الله صلی الله علیه وسلم فرموده است:

"امت من هرگز به گمراهی اجماع نخواهند کرد(همه امت من گمراه نخواهند شد اگر عده ای فریب خوردند تعدادی دیگر در برابر آن خواهند ایستاد."

در ضرب المثل عربی است که می گوید: تو می توانی همه مردم را گاهی فریب دهی و برخی مردم را همیشه؛ اما هرگز نمی توانی همه مردم را همیشه فریب دهی!

زرمسلوال

# دطالبانو مرستې دستایلو دي



په افغانستان کې دثور له انقلابه رانېولې بیا تر نن ورځې چې څومره ناخوالې او ناورینونه رامنځته شوي، هرلوري خپل عمل ته دجواز لپاره بېلابېل دلایل لرلي اویوه هم ملت او ولس له خولې نه دی غورځولی، هره کړنه ( جنایت، قتل، تباهي، غارت او...) یې ځکه ترسره کړي چې دملت! اراده یې تمثیل کړې! اولاس اخیستل یې ترې له ولس سره خیانت بللی !!.

دلته که دیوه اوبل لوري سپیناوی کوو اوحق اوناحق یې په ګوتو کوو خبره به ډېره اوږده شي یواځې دومره به ووایو : "هرڅوک پوهیږي چې غواتوره او شېدې یې سپینې دي" ، بس خوچې په رښتیا هم چا له ولس سره رښتونې مرسته اوخواخوږي شودلې وي هرڅومره چې وي دستایلو ده دتېرو څو لسیزو د جګړو او ناخوالوچې څومره اوږد جریان دی یواځې همدا پکې درانه حقیقت په ډول پېژندل کیږي اوبس .

دهمدې رانه حقیقت په تناظرکې دتېرې مبارکې میاشتې په اوږدوکې یولړهغه هڅې ستایو چې عملاً له ولس سره خواخوږي پکې ترسترګو شوه اوپه رښتیا یې هم ترډېره دولس دبې وزلو زړونه خپل کړل.

دروژې دټولې میاشتې په اوږدوکې دطالبانو له خوا له عامو بې وزله خلکو سره په تېره دیتیمانواوشهیدانو له کورنیو سره دخوراکي توکیو اونغدو روپو مرستې وشوې، دغه مرستې یې دهیواد په بېلابېلو برخوکې ترسره کړې، دلته به یې یواځې هغه ځایونه یادکړو چې ترډېره پرې باوري یو اوژوندي اسنادیې په لاس کې لرو:

کندز: چاردره، امام صاحب او دشت ارچي ولسوالی

غزني : اندړ، رشیدان اوشلګر

بغلان : ډنډغوري او مرکز

لغمان : مهترلام،

پکتیکا: خوشامند، جاني خیل، اومنه، چاربران، سروبی، ګومل او سنګین ولسوالی

جوزجان : قوشتېپه، درزآب

خوست: صبري، نادرشاه

کوټ.بدخشان: وردوج

لوګر: خروار

ننګرهار: خوګیانو، پچیرآګام، شیرزاد، سرخ رود، حصارک، بټي کوټ، چپرهار، رودات، سپین غر، اچین، کوټ، لعلپوره، مهمندره اوغنی خیلو ولسوالی هغه سیمې دي چې دغه مرسته پکې وړیاخلکوته ووېشل شوې.

دهیواد په دې هره برخه کې چې دغه ډول مرستې له ولس سره شوې دستایلودي اوډېر نیک اقدام دی مونږ نه وایو چې دامرستې لږې یاډېرې دي ، خو دغه اقدام په خپل ذات کې دستایلو دی اوله ولس سره دطالبانو دلاښه تعامل اوچلند لپاره په ځای ګام دی .

زمونږ ولس چې مسلمان ولس دی او ددین لپاره یې ډېرې قرباني ورکړې؛ په ډېره کمه لورینه ډېرزیات خوشالیږي.

افغانستان ته دتېرو شپاړلسو کلونو په موده کې دنړیوالو له لوري په ملیونو ډالره مرستې راغلې خو عاموخلکو ته هیڅ ونه رسېدې یا هیڅ ورسېدې، هغه اسباب اوعلتونه یې په منځ کې خنډشوو چې نتیجه یې په افغانانو دټپلې نظام اډانه او نا اندېوله اداره ده .

که طالبان په همدې ډول دعامو خلکو په منځ کې خپل محبوبیت خپلولوته دوام ورکړي، نو ویلی شو چې ددوه سري حکومت په وړاندې به یې یوبل سنګر هم ګټلی وي .

# مفسده اداره

# او ولسي قضاوت !!!

لطیف عزم

دپنتاګون په یوه تازه خپاره شوي راپورکې چې دافغانستان په روان امنیتي وضعیت چمتوشوی راغلي : افغانان دامنیت له پلوه په ډیرو سختو شرایطو کې ایساراوژوند کوي اوله اوسني رژیم څخه طالبانوڅو برابره زیات خلکو ته دامن او ارامي فضا برابره کړي وه .

«اسوشیتدپرس» دپنتاګون له قوله وایي دغه راپور چې دامریکا ددفاع وزارت په مرسته اومتې ترتیب شوی ، ویل کیږي چې دتیرکال ددسامبر په میاشت کې کار پرې شوی او دروان کال د( مئ ) میاشتي تروررستی نیتي پوري پرې ورځې لګیدلي .

راپور کې راوړل شوي ۲۰ فیصده افغانانو ورته ویلي چې دافغانستان امنیتي وضعیت دښه کیدو خواته روان دی ، پاتي ۴۲ فیصده افغانانو په دې ترڅ کې چې دکابل د(وحدت ملي) دولت! له کړنو او تګلارو څخه کلکه ناامیدي ښکاره کړي ویلي یې دي ،چې دطالبانو دوخت امنیت او ارامي ترینه څوبرابره ښه اوبهتره وه .

دراپور په یوه برخه دې خبري ته اشاره شوي ، چې د افغانستان لپاره دامریکاپخوانی قومندان جنرال (کمبل) هم څه موده وړاندې دامریکا دسنا مجلس ته دافغانستان دامنیتي وضعیت په اړه کوم ټکي چې اوس دپنتاګون په چمتوشوي راپورکې راغلي همدي ته ورته ټکي په ډاګه کړي وو دکابل رژیم اردو او امنیتي اورګانونه یې خلکو ته دامنیت او خوندیتوب په برخه کې ناکام او ناتوانه بللي وو.

کتونکي دپنتاګون راپور ته په اهمیت ورکولو نظرلري چې په دې ورستیو کې دامریکا ولسمشر اوباما په افغانستان کې دخپلو پوځي عملیاتو دپراخیدوکوم اعلان وکړ ، اورمرو یې تراوو دراپور له موادو اوعمومي روحیې سره شته ، ځکه اوباما فکر کړی که چیري راپورنشرشي او دکابل رژیم دناتوانه حالت اسرار عامه ذهنیت ته ولویږي، نو طالبان به نور هم غښتلي او دخلکو باور به پرې زیات شي.

همدغه ویره وه چې اوبا دراپور له اعلان وار له مخه اعلان وکړ چې هغه په افغانستان کې دپوځي عملیاتو دپراخیدو ضرورت ویني ، ترڅو په دغه کار سره مورال بایللي رژیم یوڅه دمه او په رسواییو یې پرده وغورځوي .

خو کارپوهان فکر کوي چې داوباما اعلان ددې خبري ښکارندوینه کوي چې طالبان له پخوا څخه نور هم پیاوړي او غښتلي شوي ، په دې معنا چې امریکا کومه پوځي ستراتیژۍ له دو دریو کلونو راهیسې ترمخ کړي وه، هغه بې اثره او بې نتیجې وه اودطالبانو په کمزورلو کې پاتي راغلي وه ، نو اوس په یوه داسې کار غور کوي او یایی کړی چې هغه هیڅکله نوي او طالبانو ته دانديښني جوړولو قوت اوجنبه نلري .

اکرم اندیشمند چې په عین حال کې دکابل اداري خواخوږی لیکوال او سیاستوال دی وایي : شک نشته چې امریکا په ملیاردونه ډالر داردو په جوړښت ، تربیې او انسجام ولګول ، خو داچې له یوې نیمې لسیزې تیریدو ورسته هم دکابل اردو دطالبانو په مقابل کې دمقاومت وس او توان نلري او یا خلکو ته دامنیت په تامینولو کې دناکامی په درشل ولاړه ده ، هغه یې په خپلې یوې لیکنې کې ۲ بعدونو ته اشاره کوي .

ړومبی داچې امریکایانو دکابل رژیم اردو او امنیتي اورګانونه دیوه دولت په شکل ندي پرې ایښي چې ترقي او نشئت وکړي ، بلکې دیوې استخباراتي پروژې په ډول یې وربانـدي لګښت او مصرف کړی او په هغه روحیه اوانګیزه یې روزلي چې دامریکا ورته څه ډول اړتیا او ضرورت پیښ شوي یا پیښیږي

دوهم بعد اوعلت یې دادی چې طالبانو دیوې نیمې لسیزې په اوږدو کې سره لدې چې سخت شرایط په سراړولي ، خو سخت زیار یې ګاللی ترڅو له خپل ولس او پلویانو لیرې پاتې نشي ، په تبلیغاتي میدان کې یې دکابل اداري او خارجي قواوو له هغو ضعیفو نکتو او کړنو څخه مناسبه ګټه پورته کړې چې هغه دافغانستان په خیر په یوه دیني او دودیزه ټولنه کې دانزجار وړ دي

داندیشمند په قول یاد دوه علتونه هغه څه دي چې امریکایان پکې ناکام اوپاتې راغلي او طالبانو ترینه اعظمي استفاده کړې، دهغه په فکر که امریکا په دې لټه کې هم شي ترڅو دغه خالیګاوې ډکې کړي ، البته وخت اوچانس یې له لاسه ورکړي او څه به ترینه جوړ نکړي .

رابه شو اوس بیرته دپنتاګون راپورته ، نوموړی راپور په داسې یوه حالت اوفضا کې خپریږي او



دکابل اداري په ناکامیو مخامخ اعتراف کوي ، چې دنیږدې ۱۵ کلونو په اوږدو کې امریکایانو او دمتجاوز ایتلاف ۴۱ هیوادونو یې خپل ټول کمالات ، حربي ، اقتصاد او سیاست وکاراوه ، ترڅو دکابل اداره په خپلو پښو ودروي ، اردو او امنیتي بنسټونه یې محکم کړي او په اړه یې دافغان ولس ذهنیت مثبت لورته بوځي

خو چون نیتونه او عزایم ددوئ ناولي ، خچن او په اصل کې دافغان ولس دملي او دیني ارادو خلاف وو، نو نتیجه یې له یوې نیمې لسیزې تیریدو ورسته هم (اخس ارذل) راووته !!

څه موده وړاندې غربي سرچینو په خپلو څیړونو کې ښکاره کړه ، چې ددوئ لاسپوڅی رژیم د نړی دریم مفسد او څلورم ناامنه دولت دی ، اوس یې دادی لوی بادار امریکاهم په خپل یوه تحقیقا تي راپور کې ومنله ، چې طالبانو په خپله دوره او واکمنی کې افغانانو ته له اوسني اداري څو برابره بهتر امن او خوندیتوب ورېښلی او ورکړی وو

مونږ کلک باور لرو چې الله تعالی به نور هم نړیوال استعمار او لاسپوڅي یې داسلامي امارت حقانیت تسلیمولو اودبرحقي داعیې اعتراف ته مسخر ګرځوي او یوه یوه کارنامه به یې تسلیموي

(ان شاالله تعالی)

# آنچه که رسانه ها به آن نپرداخته اند

صدیق احمدی

«خطرناک ترین و پر قدرت ترین اسلحه در میان ابزار جنگی نزد امریکا، همانا رسانه هاست!»

در عصر کنونی رسانه ها نقش زیادی در روند ذهنیت سازی افکار عامه ایفا می نمایند. در حال حاضر غرب توانسته با توسل به رسانه ها، حتی ایدیولوژی بشری اش را در ذهنیتِ افکار عامه در سطح جهان به عنوان تحفه ئی الهام بخش الهی ترسیم کند.

این را باید پذیرفت که در عصر کنونی کوچک ترین حاثه بوسیله ی رسانه ها در سطح جهان همه گیر می شود و این در حدِ یک حادثه شاید هم دقیق باشد، اما یک حادثه ای کوچک تمام جوانب قضیه را برجسته نمی سازد، بلکه بسیاری از افکاری دیگر وجود دارد که واقعیت آن برای مردمان جهان با این همه گستردگی رسانه ها، بیان نمی گردد.

چنانچه برخی از تحقیقات نشان می دهد که مردم امریکا در مسایل مهم جهانی ناآگاه ترین اند، زیرا بسیاری از رسانه های داخلی آن مردم را به مسایل کم ارزش داخلی و برنامه های تفریحی مشغول نگه می دارند! «چامسکی» یکی از مفکرین مشهور امریکائی روی شیوه های تبلیغات رسانه های امریکا تحقیقاتی را انجام داده و در بخشی از آن می نویسد: "عنصر- اصلی هدایت افکار جامعه عبارت از انحراف توجه مردم از مشکلات اساسی و تصمیمات محافل سیاسی و اقتصادی از طریق اشباع دایمی فضای جامعه با اخبار و اطلاعات مربوط به مسایل کم اهمیت اجتماعی است. روش انحراف اذهان عامه از این جهت بسیار حایز اهمیت است."

با توجه به این، رسانه ها در عصر کنونی حتی قادر اند که هدفی نامقدس قدرت های استعماری را برای ذهنیت عامه مقدس ترسیم کنند، آنچه که امروزه این واقعیت را می توان در جنگ علیه «تروریزم» که غرب آن را به راه انداخته به خوبی مشاهده کرد.

این درست است که بازیگران اصلی جنگ های ایدیولوژیک، نهادهای ستراتیژیک و مراکز مطالعات و تحقیقات می باشد، اما سرانجام این رسانه ها اند که پیشاپیش این سیاست گذاران نقش سازنده ای را بازی می‌کنند؛ به همین علت است که بسیاری از این غول های رسانه ای توسط نهادهای سیاست خارجی و استخبارات کشورهای قدرت مند، تمویل و تجهیز می گردند.

«نیوز کارپوریشن» یکی از شش شرکت بزرگ غربی است که رسانه های زیادی دیداری، شنیداری و نوشتاری را در سراسر جهان با خود دارد، و «موبی گروپ» بخشی از آن ها می باشد، که شبکه های طلوع، طلوع نیوز، تلویزیون یک، رادیو آرمان را که بیشترین بیننده و شنونده را داراست، به عنوان شبکه های اغواگر افکار عامه در افغانستان، نقش بازی می‌کنند. رسانه های فوق قبل از امضای پیمان امنیتی با امریکا، مفاد این پیمان را به نفع صلح و ثبات تبلیغ می نمودند، ولی دیده شد که با امضای آن جز جنگ، خون ریزی و فقر دیگر هیچ منفعتی نصیب مردم افغانستان نگردید!

این در حالی است که مردم افغانستان و حتی سایر مسلمانان در سراسر جهان، امروزه خواهان تطبیق نظام اسلام و بیرون راندن اشغالگران از سرزمین های خویش اند؛ آنچه که رسانه ها تاکنون به آن نپرداخته اند.





# هغه امارت چې ستنې يې په عقيده ولاړې دي

**حقمل ضياء**

اسلامي امارت چې د اسلام د مبين دين د اصلي مراكزو(مسجد او مدرسې) له متن څخه پورته شوي تحريک او نظام دی؛ د خپل شاوخوا دوه نيم لسيزيزې عمر په دوران كې هميشه د سختو امتحانونو، مهمو جريانونو، ګڼو فشارونو، مختليفو مشكلاتو، د اسلام د دښمنانو د سختې دښمنۍ او په عين حال كې ددې ټولو حالاتوپه وړاندې د لوی رب (جل جلاله)په مرسته او كومک د اسلامي امارت د مجاهدينو د مقاومت، صبر، تحمل،سالمې مقابلې او برياليتوب شاهده پاتې شوی دی.

كله چې په ۲۰۰۱ ميلادي كال كې صليبي يرغلګرو په اسلامي حريم بريد وكړ؛ او د اسلامي امارت د مجاهدينو د فساد په وړاندې پيل كړی جهاد د نړۍ په سطحه د اسلام د سرسختو كفري دښمنانو سره د مقابلې په جهاد واوښت؛ د مجاهدينو په وړاندې موجود مشكلات، ګواښونه، فشارونه او امتحانونه يو په څو چنده زيات شول؛ حتی تر دې چې هيڅ چا هم دا فكر نه كاوه چې د صليبي كفارو د دې مجهز او لوی مادي قوت په وړاندې به څوک هم د مجاهد او طالب په نوم را پورته شي؛ خو بيا هم د اسلامي امارت مجاهدين د خپل لوی رب(جل جلاله)په مرسته او كومک د اسلام، اسلامي خاورې او د خپل حيا او عزت د ساتنې لپاره خپله ملا وتړله او د دې مبارزې په لاره كې يې هر قسم مشكلاتو او كړاونو ته لبيک ووايه.

په هيواد د صليبي يرغل له پيله تقريبا د يوې نيمې لسيزې له تېريدو وروسته د مجاهدينو د بې ساريو قربانيو او سربښندنوپه بركت د نړۍ لوی طاغوتي ځواک ماته خوړلې او له مجاهدينو سره د مخامخ جګړې توان او طاقت يې له لاسه وركړی دی خو په فكري او په غير مستقيم ډول د مجاهدينو د تخريب هڅې يې د هر وخت په پرتله ګړندۍ كړې دي او د مجاهدينو د انحراف، ويشلو، په خپل منځ كې د جنګولو، د قيادتونو د له منځه وړلو، ددوی د بدناملو او همدارنګه د ګڼو نورو شومو اهدافو لپاره هره ګړۍ نوي نوي دسيسې جوړوي؛ خو للّه الحمد تر دې دمه يې په دې شومو پلانونو كې هم كوم خاص لاسته راوړنې نه لري.

تير ۱۲ مياشتې د اسلامي امارت د مجاهدينو لپاره خورا د چلنج او له ازمايښتونو ډكې مياشتې او كال وو؛ په دې كال كې داسې مهم او سرنوشت سازه واقعې رامنځ ته شوې چې د مجاهدينو او اسلامي امارت بقا ورپورې تړلې وو او ډېرو دښمنانو خو خوښۍ هم لمانځلې او ويل يې چې طالبان به نور نو له منځه ځي؛ يا به تسليمېږي او يا به وژل كېږي كنه نوربله چاره نه لري.

خو د اسلام دښمنان له دې نه وو خبر چې:

* دا عقيدوي لښكر دی، د قيادتونو له منځه تلل د دوی په فعليتونو او جهادي روحيې كومه اغيزه نه كوي.

* دا عقيدوي لښكر په خپلو تشكلاتو كې په زرګونه علمای كرام، شيوخ او بافكره اشخاص لري؛ چې هر

يو يې کولای شي چې د خپل جهادي بهير رهبري وکړي.

*د دې عقيدوي لښکر مبارزه د خپل مشر لپاره نه بلکې د الله (جل جلاله)لپاره ده.

*ددې عقيدوي لښکر هر مجاهد په دې لاره کې قرباني او شهادت خپل اصلي هدف بولي.

*دا عقيدوي لښکر به د رسول الله(صلی الله علیه وسلم) په پل، پل ورې رسول الله فرمايي: الجهاد ماضی الی یوم القیامه.

هوکې! د اسلام دښمنان په هر رنګ کوښښ کوي چې دا د اسلام بله ډېوه په هر رنګ چې وي مړه کې، خو الله (جل جلاله)د خپل د دين او ددغې بلې ډېوې ساتونکی دی.

د تېرو ۱۲ میاشتو پېښو ته په کتو ویلی شو چې:

۱ : اسلامي امارت واقعا يو عقيدوي لښکر دی او دغه عقيدوي کاروان به روان وي اګر که هر څومره مشران او قيادتونه هم له لاسه ورکي.

۲ : اسلامي امارت داسې سالم تشکيلات او د رهبرۍ شورا لري؛ چې په هر قسم سختو حالاتو کې د الله(جل جلاله)په نصرت اسلامي امارت ته د خپلو باتدبيرو پرېکړو په برکت نجات ورکولی شي.

۳ : د شهيد اميرالمومنين ملا اخترمحمد منصور (تقبله الله) مظلومانه شهادت او دده په شهادت د نړۍ د طاغوتي هيوادونو د مشرانو خوشحاليو دا ثابته کړه چې د اسلام دښمنان د اسلامي امارت له مشرانو او مجاهدينو څومره وېره لري؟ ؛ چې هم دا يې د حقانيت يو لوی ثبوت دی.

۴ : د اسلامي امارت په نوي زعيم اميرالمومنين شيخ الحديث والقرآن مولوی هبت الله اخندزاده (حفظه الله)باندې په يو غږ د مجاهدينو او مجاهد ولس را ټوليدلو دا ثابته کړه چې اسلامي امارت يو واحد او يو موټی امارت دی؛ او نور نو له هغه تفرقه اچونکو اشخاصو نه پاک او صفا دی چې د پردو په اشاره به د دې صف د ړنګولو کوششونه کوي.

۵ : له څه مودې را په دېخوا په ځانګړې ډول د رمضان المبارک په مياشت کې د اسلامي امارت د مجاهدينو له لوري د هيواد په ګوټ ګوټ کې له معيوبو، يتيمو او فقيرو کورنيو سره په پراخه کچه د خوراکي توکو مرستې له مظلومو هيوادوالو سره د اسلامي امارت د مجاهدينو خواخوږۍ او د مهربانۍ کچه څرګندوي.



۶ : د مجاهدينو له لوري سولې په نامه د دوی په وړاندې د جوړو شوو د سيسو شنډول د هغو تور پورې کونکو خلکو د تورو لپاره د مجاهدينو د ازادۍ او خپلواکۍ يو سالم ځواب وو چې دوی د مجاهدينو د تخريب لپاره کله مجاهدين په يو چا او کله هم په بل چا پورې تړي.

۷ : د کابل د ګوډاګۍ اداري له لوري د ۷ تنو مظلومو بنديانو له اعدام وروسته د انتقامي عملياتو په ترڅ د ګوډاګۍ اداري مهم قضايي اداري په نښه کول او دوی ته درونډ مالي او ځاني تلفاتو اړول دا ثابته کړه چې اسلامي امارت هيڅ چاته هم لاپې شاپې نه وهي؛ او کولای شي چې له هر ظالم نه د خپلو مجاهدينو او خپل جهاد پاله ولس انتقام يو په څو چنده واخلي.

# لویه دوره یا دورة الحدیث څنګه او چیرې وکړم؟

مولوي عطاء الحق مستنیر

زموږ د مدارسو او تعلیمي بهیر یوه ستونزه د طالبانو لخوا له دورة الحدیث سره سرسري او بې پروا چلند دی،چې زیاترو ته خو د دورة الحدیث سبق یا کال هم عادي تعلیمي کال معلومیږي او ځینې خو حتی د فنونو له زده کړې هم ورسره سطحي چلند کوي، د فنونو د سبقانو غوندې په مواظبت سبق ته نه حاضریږي، د فنونو د کتابونو په شان د احادیثو کتابونه نه مطالعه کوي، ټول وخت په منظرو تیروي او څومره چې د نبي علیه السلام د احادیثو اهمیت دی په هماغه کچه یې له درس او تدریس سره جدي چلند نه کوي.

یوه بله ستونزه دا ده چې ځیني طالبان د فنونو په وخت نهایي کوښښ کوي چې ښه مدرسه او ښه استاد پیدا کړي، لوږه ، تنده او هرډول تکلیف برداشتوي، مګر د ښه سبق تلاش کوي، اما د دورې په کال پرته له استخارې او مشورې، پرته له تدبر او تعمق چې چیرته یې دوره شروع کړه بس باک یې نه بولي نه خو د سبق په کیفیت پسې ګرځي او نه د شیخ او سند په دیني اعتبار پسې چې دا د حدیثو په روایت کې ډیر مهم دي، څکه چې د حدیثو په روایت کې چې څوک تر کومه حده په لږو واسطو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ور قریب وي روایت یې همدومره زیات د اعتبار او برکاتو حامل وي.

احادیث الرسول صلی الله علیه وسلم د اسلام له سترو اساساتو او تشریعي منابعو څخه شمیرل کیږي چې له کتاب الله وروسته ورته دوهم مقام حاصل دی، زموږ په اوسني دیني تعلیمي سیستم کې له ورې او لویې دوره مخکې ډیر لږ طالبان د حدیثو کتابونه لکه ریاض الصالحین،یا زاد الطالبین وایي. ډیر شمیر طالبان د دورو تر مرحلې له دې مهم علم څخه محروم پاته کیږي. نو څکه خو ضروري ده چې طالبان د ورې او لویې دورې کلونه کوم عادي کلونه ونه بولي، بلکې تر ټولو زیات اهمیت ورکړي،پوره اماده ګي ورته ولري، د دورې د ځای،مدرسې، استاد او هرڅه په انتخاب کې له خپلو استادانو او علماء کرامو سره ښه مشوره وکړي،او خپله هم باید استخاره وکړي،څکه د دورې کال د طالب د شخصیت جوړیدلواو تربیې تر ټولو مهم کال دی، څکه تر دې وړاندې د فنونو په مرحله کې طالب معقولات ، صرف، نحو، معاني، لغت او نور علوم ویلي وي چې زیاتره آلي علوم دي، د انسان د شخصیت له ودې، اخلاقو، مثبتو صفاتو د احیاء او د باطني امراضو له منځه وړلواو تزکیې سره ډیر کار نلري، بلکې یوازې په خپلو ټاکلو موضوعاتو باندې فني بحث کوي.

خو چې کله طالب دورة الحدیث کوي، نو دلته ورته نبوي ژوند بیانیږي، د زهد، اخلاص، تقوی دغه راز د رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو د عملي ژوند تصویر یې تر مخ تیریږي د تفسیر او حدیثو څخه الهي او نبوي ارشادات اوري او په لومړي ځل طالب له اغیزناکو اخلاقي درسونو سره مخ کیږي. نو څکه په طالب ژور اغیز کوي چې له امله یې د دورة الحدیث طلاب همیشه د نورو عامو طلابو په نسبت د ښه شخصیت، اخلاقو، تقوی او دیانت خاوندان وي.

نو ددې لپاره چې طالب د خپل علم ثمره ښه ترلاسه کړي، خپل شخصیت په ښه توګه د دیني ، قرآني او نبوي علم په زیور سمبال کړي، په ځان کې په ښه شکل د اخلاص، تقوی، دیانت، صبر، زهد،حلم او داسې نور نیک صفات پیدا کړي او ځان د دوو کلونو په جریان کې په عملي شکل تربیه کړي، نو باید د دورة الحدیث له کلونو ډیره ډیره استفاده وکړي او په ډیر جدیت ورته وګوري.

د تعلم په مهال د طالب په شخصیت جوړیدلو کې چې کوم شیان ډیر اثر لري، هغه ویل کیدونکی کتاب، استاد،د مدرسې څرنګوالی او تعلیمي ماحول، د اطاق اندیوالان او د مدرسې د غذا منبع چې آیا له حلالو روپو څخه رانیول کیږي او که په غلطه طریقه پیدا کیږي.

د دورة الحدیث د کال کتابونه خو د صحیح البخاري او مسلم شریف غوندې کتابونه دي چې اصح الکتب بعد کتاب الله ورته ویل

کیري وریپسې مهم ددې کتابونو استاد دی، د تعلیم او معارف پوهان وایي چې په تدریسي سیستم کې محور یا تر ټول اغیزناک عامل استاد دی،یعني که هر څومره ښه کتاب وي، هرڅومره ښه مدرسه وي او هر څومره ښه شاګردان وي، خو تعلیمي سلسله به په هغه شکل روانه وي څرنګه چې د استاد کیفیت وي، یعنې تر ټولو مهم عامل استاد دی چې د تدریس لوری ټاکي او په شاګردانو اثر غورځوي. نو ځکه د استاد په انتخاب کې تر هر څه زیات دقت په کار دی.

یو ښه استاد یا شیخ الحدیث هغه دی،چې د مسلمانانو تر منځ او په علمي حلقو کې په نیک نامي مشهور وي، ځکه له احادیثو دا خبره معلومه ده څوک چې د عامه مسلمانانو تر منځ محبوب وي هغه په اصل کې الله تعالی ته محبوب او مقبول وي،نو لومړی شرط دادی چې زموږ دحدیثو استاد بایدد عامه مسلمانانو په رایه او نظر کې یو ښه، متشرع او متدین عالم وي،د اخلاص، تقوا، دیانت، حیاء،زهد،خیرخواهی، عفو او الله تعالی ته د تقرب صفات په کې موجود وي.د مسلمانانو تر منځ باید منفور نه وي او نه هم په بیلابیلو تورونو تورن وي.

د یوه عالم لپاره د ارزونې تر ټولو ښه معیار او محک د عامه مسلمانانو یا د اهل السنت و الجماعه د سواد اعظم سره په فکري او عملي برخه کې توافق دی، کوم عالم چې د اکثرو علماء کرامو او عامو مسلمانانو له فکر او نظر څخه منحرف وي، خپل ځاني تفردات لري او په عجیبو او غریبو فتواګانو او بې باکیو مشهور وي هیڅکله د خیر او برکت وړ نه شي بلل کیدای.

استاد د شاګرد لپاره داسې مثال لري لکه لمر د سپوږمۍ لپاره، که لمر تازه او ځلیدونکي وي نوسپوږمۍ هم ترې پوره رڼا اخلي او ځلیدونکې به وي، مګر که لمر تندر نیولی او خپله د تیارو په جامه کې پټ وي نو سپوږمۍ ته به څه رڼا ورکړی شي؟ خفته را خفته کی کند بیدار .

نو که غواړو له ځان څخه ښه د رښتیا مسلمان، متدین عالم او متشرع فاضل جوړ کړو، باید لومړی د متدین او متشرع شیخ الحدیث لټون وکړو،تر څو له هغه څخه رنګ واخلو،د هغه له سپیڅلي درسي ماحول څخه د تقوی او دیانت برکات حاصل کړو، د هغه د ښایسته اخلاقو په هنداره کې ځان وګورو او بیا هماغسې ځان په ښایسته اخلاقو باندې مزین کړو.

علماء فرمایي چې هیڅ انسان کمال ته نه دی رسیدلی مګر یو څه وخت به یې ضرور د یوه کامل انسان په څنګ کې تیر کړي وي. حافظ شیرازي صاحب فرمایي:

شبان وادی ایمن گهی رسد بمراد

که چند سال بجان خدمت شعیب کند

مطلب دا چې د وادي ایمن شپون یعنې حضرت موسی علیه السلام له هغه وروسته پیغمبري ته ورسید کله یې چې لس کاله د یو پیغمبر حضرت شعیب علیه السلام په څنګ کې تیر او له هغه یې فیوضات حاصل کړل.

نو که موږ غواړو د دورة الحدیث له کال څخه پوره استفاده وکړو، باید د یوه بزرګ، تقوادار او داسې شیخ الحدیث لمن ونیسو او شاګردي یې وکړو چې د الله تعالی دوست وي، نه د مدرسې رنګ او رونق مهم دی او نه د یو چا د علم او فصاحت اوازه مهمه ده، تر ټولو مهم د استاد دیانت دی،باید داسې استاد انتخاب کړو چې سبا په هسکه غاړه هر ځای وویل شو چې زه لله الحمد د فلان شیخ الحدیث د شاګردۍ ویاړ لرم، نه داسې شاذ او نادر استاد چې سبا یې د نوم په اخیستلو شرمیږو او په شاګردۍ یې پښیمانه یو .

پخوانیو طالبانو به د یوه بزرګ استاد د شاګردۍ لپاره اوږده سفرونه کول، له افغانستان څخه به خلک هند ته تلل چې د مولانا حسین احمد مدني رحمه الله سره دوره وکړي او د تلمذ له شرف نه یې برخمن شي،سره له دې چې په افغانستان کې ډیرې مدرسې وې، مګر د لویې دورې لپاره به ډیرو طالبانو یا د مولانا غورغشتوي صاحب درس ته ځان رساوه او یا به یې د مولانا عبدالحق صاحب،مولانا مفتی فرید صاحب،مولانا محمد یوسف بنوري صاحب، مولانا احمدعلي لاهوري صاحب، مولانا سرفراز خان صفدر صاحب،شیخ الحدیث بهرمند صاحب او داسې نورو شیوخو عظامو رحمهم الله تر درسي حلقو به یې ځانونه رسول دغه راز د هیواد دننه به طالبانو د لوګر میرعبدالستار صاحب او د غزني د لاغرو اخندزاده شیخ الحدیث مولانا عبدالمنان صاحب تر مدرسو ځان رساوو او دورې به یې ورسره کولې تر څو یې له علمي فیوضاتو برخمن شي. چې بالاخره به همداسې کیدل چې له فراغت وروسته به په دې شاګردانو کې د خپلو شیوخو مثبت خصلتونه او ښایسته

عادات په سترګو ليدل کيدل او شاګرد به په علمي او عملي دواړو لحاظونو د استاد نمونه او يادګار و.

بله تر ټولو مهمه خبره داده چې د لويې دورې تر ټولو اساسي هدف د صحاح سته وو د زرګونو احاديثو اوريدل او له خپل شيخ نه روايت دي، تر څو شاګرد وکولای شي خپل د حديثو د روايت سند له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وصل کړي او بيا که وغواړي د يوه حديث د بيان په وخت مخاطبينو ته ووايي چې دا حديث خپله ماته له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه په دې متصل سند رارسيدلی چې ما له خپل استاد نه اوريدلی، هغه له خپل استاد همداسې مرتبه په مرتبه تر پيغمبر عليه السلام پورې.

نو دې ته په پام سره زموږ د حديثو استاد په حقيقت کې زموږ د حديثو د روايت د سلسلې لومړنی راوي دی، او د حديثو په اسناد کې د راويانو ضبط او عدالت ته کتل کيږي، تر کومه حده چې زموږ رواة عادل او تقوادار وي هغومره به زموږ اسناد او روايت قوي وي او که خدای مکړه زموږ په روايت کې مجروح او مطعون راويان را شامليږي نو ورسره به زموږ د حديثو ټول سند او د روايت اعتبار له ضعف سره مخامخ کيږي.

له همدې امله خو د قوي راويانو يا په بله اصطلاح د حديثو د معتبرو استادانو د پيدا کولو لپاره پخوانيو امامانو اوږده اوږده سفرونه کړي او کلونه کلونه خواری يې په ځان تيرې کړي دي،تر څو له يو معتبر، عادل،ضابط، متدين او صادق راوي څخه حديث واوري . که موږ د مثال په ډول د حديثو او معتبرو استادانو په طلب کې د څو پخوانيو عالمانو سفرونه وګورو نو په دې برخه کې به د هغوی جديت او تلاش ته حيران پاته شو.

امام بخاري رحمه الله د احاديثو تر ټول مشهور عالم د ماوراء النهر يا اوسني ازبکستان له بخارا څخه روان شوی،د ايران نيشاپور ته تللی له هغه ځايه يې د علم الحديث له حصول وروسته د طبرستان او ری په لاره د عراق بغداد ته ځان رسولی،د علم په لټه له بغداد څخه بصرې ته تللی،له بصرې نه د شام دمشق ته تللی، له شام څخه د فلسطين القدس ته تللی، له فلسطين څخه د مصر فسطاط ته تللی او له فسطاط نه د سعودي عرب مدينې منورې ته تللی او له هغه ځای بيرته ماوراء النهر ته راغلی او په سمرقند کې وفات شوی دی.د احاديثو او معتبرو رواتو او استادانو په طلب ټولو ائمة الحديث همداسې اوږده اوږده سفرونه کړي خو تر ټولو اوږده مزلونه د موطا أحمد مؤلف امام احمد ابن حنبل رحمه الله کړي دي. نوموړی د عراق په بغداد کې زيږيدلی له هغه ځايه د عراق کوفې ور پسې بصرې ته له هغه ځايه د ايران مرو ته تللی له مرو نه د ايران ری ښار او بيا بغداد ته راګرځيدلی، په بل سفر مدينې منورې له هغه ځايه مکې مکرمې ته ورپسې يمن ته ، له يمن نه د سعودي تبوک مقام ته له تبوک نه د شام دمشق او بيا ترکيې او ديار بکر ته تللی له ترکيې د اوسني لبنان او فلسطين په لاره د مصر اسکندريې ته له هغه ځايه برقه ښار او بيا د ليبيا طرابلس ته ، له طرابلس نه قيروان ښار او له هغه ځايه د المغرب تر ټولو لرې ښار طنجة ته تللی او بيا د ليبيا په لار د مصر فسطاط او له هغه ځايه بيرته بغداد ته راغلی دی.

په علم الرجال کې دا خبره زموږ مخ ته راځي چې امام بخاري صاحب خو حتی دومره محتاط و چې له هغه راوي نه يي هم حديث نه اوريده چې له حيوان سره يې دوکه کوله، او تشه لمن يې ورته ښوروله چې ګواکې اوربشې په کې دي، زموږ لپاره خپل د حديثو استاد کټ مټ همداسې يا تر دې زيات اهميت ځکه لري چې موږ ته د ټولو احاديثو روايت دده په واسطه رارسيږي.

زموږ د دورة الحديث له دې مقصد څخه ډير طالبان غافل وي، هغوی دا فکر کوي چې په دورة الحديث کې به د احاديثو معنی، ترجمه او يا اختلاف المذاهب زده کيږي، نه هيڅکله داسې نه ده. بلکې د دورة الحديث لوی او اصلي مقصد د حديثو د روايت د سند اتصال او استماع ده، تر څو فارغيدونکی عالم په خپله حديث په خپل سند د عنعنې په طريقه روايت کړای شي، له همدې امله شيوخ کرام په پيل کې د ټولو حديثو خپل سند له خپل استاد سره وصلوي تر رسول الله صلی الله عليه وسلم پورې يې رسوي او بيا وايي ( وبه حدثنا ) يعني د همدې مذکور سند په اساس موږ ته خپل استاد دا حديث بيان کړ.

نو دې ته په پام سره کله چې د کال په وروستيو مياشتو کې د احاديثو يوازې تلاوت کيږي طالبان يي بايد عادي او غيرضروري ونه بولي، نه بايد خوب وکړي او نه هم سوچونه او غير حاضري، بلکې په ډير جديت او دقت يي واوري تر څو يې د ټولو احاديثو د روايت سند مکمل شي او احاديث له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه ورته په متصل سند ورسيږي.

# طالبانو ته

## د امریکا د آزادۍ د اتل جورج واشنګټن لیک

خالد افغان زوی

د افغانستان د آزادۍ سرسپارلیو مبارزینو!

نیکې هیلې او احترامات مې قبول کړئ.

زما د هغې مبارزې چې د خپل هیواد امریکا د ازادۍ لپاره مې پیل کړې وه، د ۲۴۰ مې کلیزې مبارکي امریکایي واکمنو ته نه بلکې همدا د تاسو افغانانو د ازادۍ مبارزینو ته ډالۍ کوم. آزادي مو مبارکه شه، آزاد او سرلوړي اوسئ.

ښايي تاسو به هم حیران یاست چې څنګه مې د امریکا د ازادۍ د ورځې مبارکي د خپل اولس په ځای ستاسو په شان د یوه لرې هیواد اوسیدونکو او د خپلواکۍ ګټونکو ته وړاندې کړه؟؟

مه حیرانیږئ! اصلا د همداسې یوې مبارکۍ حقداران یوازې تاسو یاست، ځکه په ۱۷۷٦ میلادي کال کې د امریکا له فلادلفیا څخه زما د مبارزې پیل د آزادۍ د ګټلو په غرض و نه د آزادۍ د غصبولو په موخه. خو نن زما د هیواد امریکا چارواکي او هغوی چې ځانونه زما معتقدین بولي د آزادیو د ګټلو او ساتلو په مبارزه نه، بلکې د آزادیو د غصبولو په کار لګیا دي. هغوی کټ مټ زما د مبارزې د اهدافو په مخالف جهت کې ولاړ دي او غواړي زما د وخت د استعمارګرو انګلیسانو په شان د ازادو ملتونو خپلواکۍ ترې غصب کړي.

زه به خپل دغسې ملت، دغسې حکومت او پاتې شونو ته څرنګه د ازادۍ د ورځې مبارکي ورکړم. هغوی زما له فکر او ارمان سره جفا کړې، هغوی د زما د معشوقې ( آزادۍ) په ستوني چاړه راکښلې او له لسیزو راهیسې یې د ازادیو د غصب جګړې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې جاري ساتلې.

زما په قضاوت کې هغوی د آزادۍ د ورځې د لمانځنې حق نلري. هغوی د آزادۍ قاتلان او ددې ستر بشري ارزښت په وړاندې تر ټولو ستر جانیان او مجرمین دي چې کله به یې هم تاریخ ونه بښي.

اما بالمقابل تاسو، د ازادۍ مبارزین ، که هرڅو زما له خاورې او هیواد څخه لرې یاست، اما زما د داعیې ( ملي ازادۍ)تر ټولو ښه حق پیژندونکي یاست. تراوسه مو له هیچا سره د دې ستر ارزښت په سر معامله نه ده کړې. ازادي مو د الله تعالی یو لوی او نه هیردونکی نعمت بللی نو ځکه مو زه دې ویاړمن موقف ته د احترام سر ټیټوم او د خپلې حریت غوښتونکي مبارزې د پیل د کلیزې په مناسبت د مبارکۍ مراتب یوازې تاسو ته وړاندې کوم.

د افغانستان د ازادۍ فداکارو مبارزینو!

پوهیږم چې زما خبرې به په تاسو ښې نه لګیږي، زما او زما د هیواد له نوم نه به مو کرکه کیږي، ځکه زما د هیواد اوسني حکومت ستاسو په هیواد یرغل کړی او ستاسو په وینو ګټل شوې او پالل شوې تاریخي ازادي یې درنه غصب کړې ده. مګر په دې پوه شئ چې زما دې ناخلفه اولادونو زما اروا هم همدومره تعذیب کړې لکه ستاسو په غوښو او هډونو یې چې چپه میچنې ګرځولې دي.

ما د دوی لپاره یو مستعمره هیواد ازاد کړ او هیله مې وه چې دا به د آزادۍ سمبول هیواد وي، مګر دوی زما په وینو ازاد شوی هیواد د آزادیو په تر ټولو ستر غاصبوونکي هیواد بدل کړ، دوی زما داعیې ته په سپکه وکتل نو ځکه زه هم له دوی نه متنفر یم او غواړم د خپل سرګذشت په اړه یوه شیبه له تاسو سره خواله وکړم.

لکه همدا اوس چې ستاسو هیواد د امریکا، برتانیا، فرانسې، جرمنی او ګڼو نورو استعمارګرو په منګولو کې ښکیل

دی، دوه نیمې پیړۍ وړاندې زمـا هیـواد امریکا هـم کـټ مـټ همداسـې د لـویې برتانیې مستعمره و، لکه لویدیځ یرغلګـر چې ستاسو هیواد ته د پرمختګ، تمدن او بیاودانولو له شعار سره درغلي، برتانویان هم زموږ هیواد تـه کـټ مـټ لـه همـدې شعارونو سره راغلي و، دوی ویل چې موږ تـه تمـدن واردوي، زمـوږ لارې اوبندونـه جوړوي او نور زیربنـایي کارونـه کـوي، چې تر یوه حده یې دغه کارونه ترسره هم کړل او د امریکا د وچې ځیره یـې وربدلـه کړه. مګر ددې ټولو استعماري خدماتو په عوض کې یې له موږ څخه د ازادۍ په نوم ستر ارزښـت سـلب کـړی و. مـوږ مـلي خپلواکي نه درلوده. زموږ د پریکړو اصلي مرجع له سمندرونو پـورې خـوا لنـدن او زموږ د

برخلیک ټاکلو واک د انګلیس واکمن جورج دریم او لویې برتانیې د ملکـې پـه ګورت کې وه.

عجیب تصادف دادی چې انګلیســانو د یو لړ استعماري مرستو په بدل کـې پـه موږ هم کټ مټ داسې تذلیلوونکي قوانین تحمیل کړي وو لکه نن سبا چې د امنیتـي قرارداد تر نوم لاندې امریکایانو په تاسـو تحمیل کړي دي.

مثلا لکه ستاسو د مهمو هوایي اډو لکه باګرام، قندهار،خوست او نورو مکمل واک چـې د امریکـا پـه لاس کـې دی. برتانویانو زموږ تر ټولـو مهـم سـمندري بندر باسټن په خپل واک کـې اخیسـتی او هیڅ امریکایي تجاري کښتۍ ته اجازه نه وه چې په دې ساحل لنګر واچوي.دغه راز لکه څنګه چې د امریکا په امنیتـي تـړون کـې دا خـبره تسـجیل شـوې چـې هـر امریکایي تبعه چـې پـه افغانسـتان کـې جنایت کوي باید په امریکا کـې محاکمـه شي انګلیسانو هم د عـدالت د قـانون پـه نوم په موږ دا تحمیل کړې وه چې انګلیس وګړی که هر ډول جنایت لکه قتـل، غـلا ، زبرزنا یا بل څه وکړي یوازې یې د انګلیس حکومت د توقیف او محاکمـه کولـو واک لري.

دوی دا قـــانون ځکـــه ډیـــر توهینوونکی و چې انګلیسي پوځیانو تـه یې زموږ د اولس په وړاندې د هرډول کړنو ازادي او معافیت ورکاوو چې له املـه یـې په امریکایي اولـس د انګلیســانو د ظلـم، جبر او تجاوز ګراف خورا لوړ شو نو ځکه ما هغه مهـال پـه دې قـانون (د جنایـت قانون) نوم کیښود.

انګلیسانو زموږ په هیـواد کـې ګـڼ شمیر پوځې اډې درلودې،دوی د تحمـیلي تړونونو له مخـې دا واک درلـود چـې تـر هـرې کچـې خپـل پوځیـان زیـاتولی او کمولی شي حتـی دوی زمـوږ د سـیاسي زعامت ټاکلو واک هم د پردې تـر شـا پـه خپل لاس کې ساته خو ظاهرا یـې لکـه د کابل د حکومت په شان مسـتعمرو تـه د محلي حکومت جوړولو اختیار ورکـړی او عامه اذهان یې پرې دوکه کړي و.

اما د انګلیسانو له دې ټولو ځالاکیو او نمایشيــ برنــامو سره سره زه پــه دې پوهیدلم چې موږ آزادي نه لرو،موږ د خپل زعامت په خپله د ټاکلو اختیـار نلـرو،او موږ حتی په تجاري برخه کې د انګلیسيـ مالیاتي قوانینو په زولنو تړلي یو چـې دا هر څه رابانـدې د اسـتعماري مرسـتواو بیــاودانولو د شـعارونو پــه شــان پــه غولوونکو وسیلو منل شوي دي.

همدا لامل و چې ما او زما ملګـرو د ازادۍ لپاره مبارزه پیـل کړه.مـوږ د ازادۍ لپاره کلونه کلونه سـخته مبـارزه وکـړه، څرنګه چې زموږ د حریت خواهۍ جګړه د لویې برتانیې پـه شـان لـه یـوه سـتر او پرمختللي زبرځواک سره وه. نو کـټ مـټ ستاسو په شان په موږ هم د لیونیـانو او ځان هلاکوونکو تورونه ولګیـدل.دا چـې موږ د انګلـیس د مجهـز پـوځ اتصـالاتي شبکې او د رسد لارې وهلې نو مـوږ یـې وطن ورانوونکي او تخریـب کـاران بللـو، انګلیسان چې په خپله یې لـه مـوږ سره د مقابلې توان درلود بـالاخره یـې د ځـایي امریکایي اجیرو وسلوالو لښـکرې زمـوږ مقابلې ته راوړاندې کړې، موږ به چې لـه دې ملي غدارانو او مزدورو عسـکرو سره جګړې کولې او هغوی به مو وژل نو ځینو خلکو به اعتراض راباندې کاوو چې تاسو خو خپل امریکایان وژنئ. زموږ دلیل به دا و چې دا که څه هـم پـه نسـب او رشـته امریکایان دي، مګر همکاري، فکري تـړاو او ژمنتیا یې له یرغلګرو سره ده، د هغوی په مخکې ولاړ دي او له هغوی سره د خپل هیواد او هیوادوالو د تذلیل او سرکوبۍ په جګړه کې ملګري دي. دوی امریکایان نـه بلکې د امریکا غداران او حریت پلورونکي دي. د دوی ستره ګناه ملي غداري دي چې

له خپل هیواد او اولس سره یې کوي نو ځکه د وژلو وړ دي. خو زما له دې دلیل سره سره ډیرو بې ارادې خلکو نه غوښتل د موضوع په حقیقت سر خلاص کړي نو ځکه یې زموږ د ازادۍ سپیڅلې جګړې ته ( امریکایي وژنه) ویل.

څرنګه چې زموږ پوځ توان محدود او د انګلیس د منظم پوځ په وړاندې ډیر کمزوري وو، نو ځکه اړ وو چې د چریکي جګړو پرمخ بیولو لپاره د استقرار قرارګاه ولرو، زموږ د هیواد په ګاونډ کې د فرانسې او هالنډ مستعمرات وو،موږ په عقیدوي او نظري لحاظ هغوی ته هم په کرکه کتل، د هغوی استعماري تګلاره مو هم نه وه خوښه چې تر استعمار لاندې سیمې یې اشغال کړې وې.

اما د هغوی فرق له انګلیس سره دا وه چې فرانسې او هالنډ مخامخ زموږ په هیواد یرغل نه و کړی،موږ ته چې د خپل هیواد ازادۍ اولویت درلود له انګلیس سره د فرانسې او هالنډ دښمني راته د استفادې غوره فرصت ښکاره شو.موږ پرته له دې چې له فرانسویانو او هالنډیانو سره کوم تړون لاسلیک کړو یا یې هم کوم ادنی شرط ومنو. یوازې د خپل هدف د ګټلو او خپلې مبارزې د پایښت لپاره مو د فرانسې او هالنډ تر واک لاندې سیمو څخه استفاده پیل کړه.موږ دا کار ددې په خاطر وکړ چې موږ له ځواکمن دښمن سره د مقابلې په مهال او تنګې جغرافیې له امله د زوال له خطر سره مخ و او د خپلې بقاء لپاره مو باید هر څګ ته لاس اچولی وای.

موږ په داسې حال کې چې له فرانسویانو سره مو هیڅ تړون نه درلود، او نه مو هم یو قدم د فرانسې د اهدافو په لار کې واخیست، بلکې له سره تر پایه مو ټوله مبارزه دخپل هیواد ازادۍ لپاره وه، مګر داچې له فرانسویانو سره مو د ستراتیژیک مصلحت په مبنا جنګ نه کاوو. د انګلیس غلامانو راباندې د فرانسې د ګوډاګیتوب تور ولګاوو او همدې خبرې ته پوکی ورکول یې پیل کړل. د انګلیس محلي غلامان چې د هغوی تر مستقیمې قوماندې لاندې د خپل هیواد د ملي مبارزینو په خلاف جنګیدل،له انګلیسه یې معاش اخیست ، د اوږې ټوپک، دغاړې جامې او د پښو تر بوټو پورې یې ټول څه د انګلیس لخوا ورکول کیدل او تر ستوني په غلامۍ کې ډوب وو، ددې په ځای چې خپل ګریوان ته وګوري او خپل موقعیت درک کړي، یوازې د وجدان غولولو لپاره یې په موږ د فرانسې د غلامۍ ټاپه ووهله، د دوی غرض دا و چې په دې ټاپه سره به خپله غلامي توجیه کړای شي اما دوی ونه توانیدل چې عام اولس دوکه کړي. عام اولس ته موږ هم معلوم وو او دوی هم چې څوک تر کومې کچې غلامان او څوک د ازادۍ جانفداء مبارزین دي. بله دا چې وروسته تاریخ هم ثابته کړه چې زموږ مبارزه د فرانسې او هالنډ د ګټو لپاره نه وه، بلکې د خپل هیواد د ازادۍ لپاره وه، موږ له فرانسې سره تړاو نه درلود، یوازې مو د خپلو ګټو لپاره ورسره اړیکې درلودې چې له دا ډول اړیکو د نړۍ هیڅ حریت خواه مبارزه هم خالي نه ده پاته شوې او بیا تاریخ زموږ استقلال له دې هم ثابت کړ چې د انګلیس له شکست وروسته موږ له فرانسې او هالنډ سره هم همداسې برخورد وکړ او د هغوی په وړاندې مو د ځایي حریت خوا مبارزینو جګړه برحقه مبارزه وبلله.

نو د افغانستان د ازادۍ اوسنیو سرلوړو غازیانو!

زه چې ستاسو وضعیت ته ګورم نو کټ مټ مې هماغه حالت ذهن ته راشي چې زه ،تامس جفرسون او د امریکا د ازادۍ نور اولني مبارزین د خپل هیواد د ګټلو د جګړې په مهال په کې ښکیل وو. خو له موږ سره ستاسو توپیر دادی چې زموږ په وړاندې که یوازې برتانوي زبرځواک ولاړ و ستاسو په خلاف تقریبا نیمه نړۍ ولاړه ده.ستاسو د ازادۍ دداعیې په خلاف ټول استعمارګر سره یو لاس شوي، تر خپل منځ یې، پوځي استخباراتي اتحاد کړی، ځینو یې پوځیان ستاسو مقابلې ته لیږلي،او په خورا درنو تجهیزاتو او پیش رفته وسلو ستاسو د نابودۍ لپاره هڅې کوي. اما دا چې تاسو له دې ټول نړیوال ایتلاف سره جنګیږئ او د ازادۍ لپاره سترې قربانۍ ورکوئ، زه مو عزم او ارادې ته د احترام سر ټیټوم او خپله مبارزه ستاسو د پرتمین مقاومت په وړاندې یوه ناڅیزه کارنامه بولم.

یوه مهمه خبره چې باید ورته متوجه واوسئ داده چې هیڅکله د خپلو دښمنانو په تورونو او پیغورونو د کمترۍ احساس مه کوئ. د ازادۍ غصبوونکي او

د هغوی ځنځیر په غاړه غلامان همیشه د ازادۍ په ویاړمنو مبارزینو همداسې تورونه لګوي. د ازادۍ مبارزینو ته احمقان او لیونیان وایي، د هیواد ورانوونکي، د اولس وژونکي، د تمدن او تهذیب دښمنان او داسې نور نومونه ورباندې ږدي.موږ چې د امریکا د ازادۍ لپاره مبارزه کوله نو شعار مو دا وو چې : موږ یا ازادي غواړو او یا مرګ.

زموږ دغه شعار به چې د اولس بې ارادې او له اشغالګرو څخه متاثرو خلکو اوریدو نو د تمسخر خنداګانې به یې کولې، په خپلو تبصرو او خبرو کې به یې موږ سرناخلاصه او احمقان بللو، چې ددوی په خبره له ډبرو سره سرجنګوو او یوازې ځان هلاکوو.

دغه ډول خلک چې د ازادۍ په مفهوم او اهمیت نه پوهیږي دوی په اصل کې انسانان نه بلکې د پسونو او میږو په شان حیوانات دي چې د بادار د لاس غړوندی د ځان لپاره تر ټولو ستر نعمت او ارزښت بولي.

زما یو ملګري توماس جفرسن به د ازادۍ په اړه ویل : آزادي یو څپاند او توپاني دریاب دی، ډارن او غلام صفته خلک ددې دریاب په څپو د سپریدلو تاب نه لري بلکې د استبداد تر سیوري لاندې آرام ژوند غوره بولي.

آزادي خورا ستر انساني ارزښت دی، دا یو له هغو محدودو اقدارو څخه ده چې د ګټلو لپاره یې باید وینه هم ورکړای شي،مګر نن سبا د امریکا په شمول نړیوالو غاصبانو د خپلو ګټو په خاطر هڅه پیل کړې چې دغه ارزښت مسخ او د انسانیت له قاموس څخه وباسي. په دې لړ کې دوی د ازادۍ اصلي مفهوم چې ملي ازادي او خپلواکي ده په فردي ازادي یا لیبرالیزم او بې بندوباري سره تعبیروي، له نړیوالو اولسونو څخه اصلي او مشروعه ازادي(استقلال) اخلي او په عوض یې ورته فردي ازادي ورکوي. دا داسې مثال لري لکه له چا چې سره زر واخلې او په عوض یې ورته کچه اوسپنه ورکړې او بیا یې په دې عنوان خطاء کړې چې دواړو د فلزاتو له نوعې څخه دي.

نن سبا په نړیواله سطحه دازادۍ ګټلو پدیده ډیره پردۍ شوې ده.د نړۍ اکثریت اوسیدونکي په دوو برخو ویشل شوي دي یا خو د ازادۍ غصبوونکي دي او یا هم د ازادۍ په قدر نه پوهیدونکي او د غلامۍ منونکي. د ازادۍ ګټونکي او ددې ستر ارزښت لپاره قربانۍ ته اماده انسانان تقریبا په نشت حساب دي. له دې جملې همدا تاسو یاست چې د ازادۍ او خپلواکۍ په مفهوم او منزلت پوهیږئ.که څه هم له پراخ تبلیغاتي توپان سره مخامخ یاست او د نړیوالو رسنیو لخوا درباندې فشار زیات دی مګر تاسو د بې غیرتۍ له نړیوالې وبا سره ښه په نره مقابله کړې. د سرټیټو او سرټیټوونکو په نړۍ کې مو د عزم او میړانې تندۍ هسک ساتلې. نه خو د چا فرعونیت ته تسلیم شوي یاست او نه د هیڅ جهت له ګواښونو، لاپو او فشارونو څخه ویریدلي یاست.

ستاسو د همدې سرلوړي موقف له امله له همداوسه د ازادۍ او استقلال مبارکي درکوم. زه یقین لرم چې تاسو به د ازادۍ ګټلو مبارزه تر منزله رسوئ او په بشپړ ډول به خپل هیواد په دې نعمت ښایسته کوئ. ځکه تجربو ثابته کړې چې ازادي یوازې د هغه چا په درشل پښه ږدي چې حق یې اداء کولای او له عهدې یې وتلی شي. آزادي کومه باد راوړې پدیده نه ده چې په تصادفي ډول د کوم غلام په سر کینې. بلکې دا د وینو، قربانیو او امتحاناتو له معبر څخه تیریدونکي یو سنګینه داعیه ده، چې له همدې ځایه خو پوهانو ویلي چې : ازادي ورکول کیږي نه ، بلکې اخیستل کیږي.

تاسو چې نه خو د عین او غین په شان د ازادۍ خرڅوونکي یاست او نه هم د بوش او اوباما غوندې د ازادۍ غصبوونکي. بلکه د وزیر اکبر خان او امان الله خان غوندې د ازادۍ ګټونکي یاست زه مو د ځمکې د سر تر ټولو معیاري او ویاړمن انسانان بولم. او ستاسو په حضور کې د ازادۍ په خرڅوونکو او غصبوونکو لعنتونه وایم.

زه ښبنه غواړم چې له هغې خاورې سره تړاو لرم چې پوځیانو یې ستاسو ازادي غصب کړې، اما من حیث انسان به کله هم دغه جفاء توجیه نه کړم او نه به د ازادۍ د ننګیالیو په سرلوړۍ او منزلت سترګې پټې کړم.



# حمد

شاعر عطار

حمد بی حد آن خدای پاک را
آنکه ایمان داد مشتی خاک را

آنکه در آدم دمید او روح را
داد از طوفان نجات او نوح را

آنکه فرمان کرد قهرش باد را
تا سزای داد قوم عاد را

آنکه لطف خویش را اظهار کرد
بر خلیلش نار را گلزار کرد

آن خداوندی که هنگام سحر
کرد قوم لوط را زیر و زبر

سوی او خصمی که تیرانداخته
پشه کارش کفایت ساخته

آنکه اعدا را بدریا درکشید
ناقه را از سنگ خارا برکشید

چون عنایت قادر و قیوم کرد
در کف داود آهن موم کرد

با سلیمان داد ملک و سروری
شد مطیع خاتمش دیو و پری

از تن صابر بکژمان قوت داد
هم ز یونس لقمهٔ با حوت داد

بنده را اره بر سر می‌نهد
دیگری را تاج بر سر می‌نهد

# غزل

#قاري توریالی_تآئب

د آهونـــو مـــې لښـــکرې درپســـې شـــوې
زمـــا اوښـــکې ملغلـــرې درپســـې شـــوې

تـــا بـــه وســـیځې غلیمـــه! خیـــال دې ســـاته
دا وړې ـــــ وړې بڅـــرې درپســـې شـــوې

د آهونـــو تـــاؤ یـــې ځـــي تـــر کهکشانـــه
د یتیـــم مـــاتې وزرې درپســـې شـــوې

د ګـــودر دنګـــه چینـــاره ورتـــه نـــاڅـــه
د پیغلوټـــو مـــو ســـندرې درپســـې شـــوې

کـــه زلمیـــو مـــو احســـاس لـــه لاســـه ورکـــړ
پیغلـــو واغوســـتلې زغـــرې درپســـې شـــوې

"د تآئـــب" د اســـویـــلو آزار دې واخیســـت
تـــرمـــې اوښـــکې مســـافرې درپســـې شـــوې

# جنـډې ریـږي

#مفتون

دا چـې پـورې پـه مـزار جنـډې رپیـږي
دا ځـما پـه شـهید یـار جنـډې رپیـږي

دې هېـوادکې ګناهګـار زړونـه لړزیـږي
جنګ دی شـور دی او غبـار جنـډې رپیـږي

دا ګـــودر اوس د پیغلوټـــو هـــدیره ده
چې ترڅنګ یـې پـه چینـار جنـډې رپیـږي

څوک طالب به یې بیا سیوري تـه دمـه وي
دا چـې بیـا کـرار کـرار جنـډې رپیـږي

دا ځـمـونږ د کـلي نښـه ده جانانـه
چـې راځـې پـه هـره لار جنـډې رپیـږي

دغـــه دي د شـــهیدانو یادګارونـــه
داچې ځـای پـه ځـای قطـار جنـډې رپیـږي

دا د پټـــو ارادو نتیجـــه نـــه ده
دا د مینـې پـه اظهـار جنـډې رپیـږي

پـه سـپین مخ یـې د توحید کلیمـه لیک ده
دار اخیسـتي دي کفـار جنـډې رپیـږي

امارتـه تـر قیامتـه بـه کـه خـدای کـړي
سـتا پـه نـوم د افتخـار جنـډې رپیـږي

د وحـــشي لښـــکر پـــه رنګـــو کلاګـــانو
بیـا ځـمـونږه بـې شـمار جنـډې رپیـږي

دا ښـــکلا د پـــسرلي نـــه ده مفتونـــه
د ملګـــرو پـــه یادګـــار جنـــډې رپیـږي

# متلونه

باد چې پاسني وی باران یې ګړندی وي
دیوال نم نړوي خو انسان غم زړوي
ـ اوبه چې تر غاړې ورسیږي، زوی تر پښو لاندې کیږي.
ـ اوربشي که سل منه دروېي شي ، دخره پکښې یو لپه ده ..
ـ اوړه یو موټ نه لري ، تنور ئې پر بام جوړ کړي

# دأمیرالمؤمنین شهادت

## او د امریکا نامعقول وحشي دریځ

حســـن زوی

امیرالمؤمنین ملا اخترمحمدمنصور رحمه الله تعالی دروانې میاشتې شعبان پـه ۱۴مې نېټې چې دجوزا درومبۍ نېټې سره یې سمون خوړ دکندهار ولایت ریگستان اودبلوچستان نوشکي ته څېرمه پـه یـوې سرحدي سیمې کـې دامریکـایي طـاغوت دبې پیلوټه الوتکې پـه بریـدکې دشـهادت لـوړ مقـام تـه ورسـېد انـا لله وانـا الیـه راجعون.

هرانســـان چـې نـړۍ تـه سـترگې خلاصوي ، ورنه دابـدلپاره سـترگې پټـوي اوپکې څومره ژونـد تېروي ددې هرڅـه پرېکړه یواځې الله تعالی کوي اوعلم یـې هم یواځې الله تعالی ته دی ؛ داهرڅه لـه وړانــدې لیکــل شــویدي اوپکــې هــیڅ مخکیـوالی او وروسـته والـی نـه راځـي؛ همـدې تـه تقـدیر ویـل کېـږي ؛ پـردې دهرمســلمان کلـک بـاور اویقـین لـرل شرعاًضروري دی ؛ زموږ دین دهرمسلمان نه ددې یقین لرلوغوښتونکی دی اودایقین دایمان داسـې برخـه ده چـې لـه دې پرتـه ایمان داعتباروړ نه گڼل کېږي .

ستر اوکوچنی ؛ځوان اوزوړ؛ بډای اوغریب نېک اوبد یو هم دالله تعالی ددې قـانون نـه مسـتثنی نـدی اوټـول دهمـدې خـدایي قـانون سره سـم نـړۍ تـه راغـلي اوتـرې تللي دي .

امیرالمؤمنین ملا اخترمحمدمنصور رحمه الله تعالی هم یو انسان و او دهمدې خدایي قانون لـه مخې په مقرر وخت او ځای کې یې نړۍ ته سترگې وغړولې اوپه مقرروخت اوځای کې یې روح له بدن نه جدا اودابدیت پرلوریې پرواز وکړ .

دالله تعالی دا پرېکړه موږ ته په سر سترگو قبوله ده او درب العالمین پر قضارضا خپـل شرعـي مسئولیت گڼو خو چې په فراق یې د هېواد او نړۍ دټولـو ژمنـو او باشـعوره مسـلمانانو اوخصوصـاً دنـړۍ اوافغانســتان مجاهـدینو سره یوځـای سـخت غمجـن اودردمـن یـو او پـه الفـاظو اواوښـکو دژړونوددې غم اودرد اظهارکوو دا مو هغه طبعي حق دی چې خدای راکړیدی نو نه یواځې دا چـې دغم اودرد ددې اظهارنه موخپل رب نه منع کوي بلکې دا د انسـانانو تـر مـنځ د خپلمنځـی تـرحم او همدردۍ نښه گڼي نو ورته مقبول دی اورحم هم په همداسې رحم کونکو کوي .

اسلامي نړۍ چې نن په مختلفولحاظونو د ویش او انتشار ښکاراو دواحد قیادت نـه محرومـه ده او په مختلفومهمو برخوکې بې کورني جنگونه روان دي دبهرنویرغلونونه ددفاع توان یې له لاسه ورکړیدی

اوضعف په همدې حالت کې یې پرضد دانساني تاریخ هغه بـې سـارې سترصـلیبي اتحـاد هـم رامنځته شوی ؛ چې مشري یې دامریکا په څېر ښکېلاکگر، خونخوار وحشي زبرځواک کـوي ؛ دې اتحاد چې داسلامي نړۍ پرضد جنگ اعلان او دسـتوني نـه دټـولې اسـلامي نـړۍ دتېرولوپـه موخـه داجنگ عملاً پرافغانستان دیرغل کولونه پیل نو په ټولې اسلامي نړۍ کې ډېره ستره ناهیلي خپره وه ؛ هیڅا داگومان نه کولوچې گینی ددې سترمادي طاقت مقـابلې تـه بـه څـوک راووځـي اویابـه گینـې داسلامي نړۍ کوم گوډ دصلیبیانو دناپاکوقدمونونه خوندي پاتې شي.

دناهیلۍ په همدې سترعالم کې چې دعادي جنگي وسایلوسره طالبان ددې ستراتحادمقابلې تـه راووتل نو نه یواځې داچې کم شمېر طالبانو دډېروعادي اوکمزوروووسایلوپرمټ ددې ستر زبرځواک پرضد تراوږدې مودې پورې جنگ جاري وساتلای شو بلکې دټمې خلاف یې دې لوی دښمن ته داسې ملاماتونکي گوزارونه ورکړل چې دښمن پخپلـه دشکسـت اعترافونوتـه اړشـوچې پـدې سره دنـړۍ دټولومسلمانانو دامېد سترگې یواځې دطالبانوپرلورشوې اویقین ته یې پرېوتـه چـې دمسـلمانانو ددې ستر دښمن شکست اودمسلمان ملت نجات دطالب دوجود اوداسلامي امارت دبقا سره تړلی دی .

همدا لامل دی چې دنړۍ ژمـن مسـلمانان اسـلامي امـارت تـه ډېـر دقـدر پـه نظرگـوري ؛ پـه زړونوکې یې داسلامي امارت دزعیم ډېرلوړمقام دی اودطالبانوسره بې کچه مینه کـوي ؛ پـه بریـاوو اوپرمختگونو یې ډېرخوشالیږي اوپه درد یې سخت دردمن وي نو ځکه وایوچې دامیرالمـؤمنین مـلا

اخترمحمدمنصور رحمه الله پرشهادت نـه یـواځې دافغانسـتان مجاهـد ولـس بلکـې ټوله اسلامي نړۍ غمجنه ده اوټولـه پـرې ژاړي .

دهغه رحمه الله تعالی دفـراق داغـم او درد طبعـي دی خـو دشـهادت پـه کـوم مرګ چې هغه ومړ هغه مرګ دېردلوړې مرتبـې والامـرګ دی ؛ داهغـه مـرګ دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به یـې سخته تمنا کوله اوفرمایل به یې چې : ځـه داخوښه ګڼم چې دالله تعالی په لارکې بیـا بیا شهیداوبیا بیا ژوندی شم .

نوځکه ددې لـوېې مرتبـې حصـول دهرمسلمان خواهش وي اوهرمسلمان پـه خپلې دعا کـې دالله تعـالی نـه دا سـترمقام غواړي ؛مسـلمان دبـل مسـلمان لپـاره هـم شـهادت غـواړي او دادمسـلمانانوپه خپـل منځې صالحو دعاګانوکې ډېره مهمـه دعـا ګڼل کېږي .

داسمه ده چې داسـلام اومسـلمانانو دترټولوسـتر دښـمن پـه لاس چـې دټـولې اسلامي نړۍ دا دومره سترشخصیت ووژل شو دې ټـول مسـلمانان پـه طبعـي لحـاظ خفـه کړیـدي خـوداهم دټولومسـلمانانو عقیده ده چې دځومره ستر کافراوداسـلام اومسلمانانو دلوی دښمن په لاس دمسلمان شهادت رامنځته کېږي پـه هماغـه انـدازه دمسلمان شهادت هم لوی ګڼل کېږي .

دحقـــې لارې هرمجاهـــد ددیـــن ،اسلامي خاورو اومسلمان ملت نه ددفـاع اوداسلام دسرلوړۍ لپاره دخدای په لارکې جنګېـږي اوهمـدا یـې اصـل هـدف وي خوپدې لارکې شهادت یې هم ستره هیلـه وي ؛ تل دشهادت تګـې وي اوددې تنـدې دماتولو لپاره ځوځېله دخپل تندي ماتولوته تیار وي .

منصورصیب هم دحقې لارې یوداسې مجاهد وچې تېرې څه دپاسـه دوه لسـیزې یـانې دخپـل عمر کابونیمه برخه یې یاد هدف اوهیلې ته درسېدوپه هیله دخدای په لارکـې پـه جهـاد کـې تېـرې شوې تردې چې الله تعالی دده په لاس دلویوجهادي اهدافوتحقق هم یقیني کړ اوهـم یـې هیلـه پـوره شوه اوداسې پوره شوه څرنګه چې ده غوښتله .

پرامیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور صیب چې دده سلف د ستر فراسـت څښتـن ؛د هېـواد او ملت لوی غمخور، ربښتینی مدبر، د همـت غـر او د جـرأت ، حریـت او د قربـانۍ سـمبول عالیقـدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله تعالی اعـتماد کـړی و اوپـه خپلـو ټولـوملګرو کـې یـې دنیابت لپاره دده انتخاب وکړ اوبیا چې دامارت ټولو مهمو مشرانو دده پـه مشرۍ اتفـاق وکـړ دا دده لپاره دلته په دنیا کې لویه مرتبه اودخدمت ستره موکه وه. نوعام ، مسـلمانان ،مجاهـدین اودامـارت مشران چې په دنیا کې دده پـه دومـره لـوی مقـام خـوښ وو پـه آخـرت کـې هـم ورتـه دلـوی مقـام غوښتونکې ووچې دنړۍ دترټولووحشي ، خونخوارو اوظالموکافروامریکایانوپـه لاس دده دشـهادت له لارې الله تعالی ده ته دامقام ورکړ او ارمانونه یې ورپوره کړل .

ترکومـه چـې اسـلامي امـارت تـه لـه دې لارې دلـوی تـاوان رسـولو اودامریکـا دفتحـې یاشومواهدافوته درسېدلوخبره ده نودا حقیقت ټولې نړۍ ته له ډېر وړاندې نه روښانه شـویدی چـې دطالب مشرانو شهادتونو هیڅکله هم د اشغالګرو پرضـدروانې مبـارزې کـې هـیڅ نقصـان ، کمـی اوتوقف ندی راوستی ځکه چې داجهاد اوپدې جهاد کې دالویې قربانۍ داشخاصـو لپـاره نـدي چـې دشخص په تلو یا راتلو دې روان شي یا ودرېږي ؛ دامبارک عمل چې دکوم ذات لپاره کېږي هغـه ازلاً وابداً ژوندی ذات دی اوترڅوچې دادنیا ودانه وي دهغه لپاره به داعمل جاري وي .

دشمېر په لحاظ کمواود وسـایلوپه لحـاظ کمزوروطالبـانوچې دانسـاني تـاریخ دترټولوسـتر جنګي اتحاد په مقابل کې هم داوږدې مودې لپـاره جنـګ جـاري وسـاتلو اوهـم یـې دالـوی دښـمن دشکست تر سرحده راورسولو ددوئ ټولوداعقیده ده چـې دا هرڅـه یـواځې دهغـه ذات پـه فضـل وشول دچالپاره چـې داعمـل جـاري دی خوداسـبابو دنیـا تـه چـې نظـر وکړونـودنړۍ ټـول پوهـان ،څېړونکي ؛ سیاستوال اودنظرڅښتنان دوستان اودښمنان وایې چې دطالبانودکامیابۍ یواځنی سـبب دطالبانودصف وحدت اوپه واحدقیادت باندې راجمع کېدل دي چې لله الحمد دا وحدت اوپه واحـد قیادت باندې جمع چې څنګه وه هماغسې اوس هم ده نوځکه وایوچې دجهـاد روان عمـل تـه هـیڅ تاوان ندی رسېدلی.

ملامحمد عمرمجاهد رحمه الله تعالی چې داسلامي امارت زعیم او دطالبانوداسـلامي تحریـک مؤسس و وفات یې ستره حادثه وه ؛ دښمنانو خو به دخپلو رسنیو له لارې همدا تبلیغـات کـول چـې طالبان به دیوغورځنګ په صفت نور باقي پاتې نه شي ؛ دوئ به ټوټه ټوټه شي ؛اکثریت به یې وسلې په ځمکه کېږدي اونور به دبهرنو ځواکونو پرضد دجنګ روان ساتلوتوان له لاسه ورکړي .

کمزوري اوضعیف الایمان مسلمانان ددوئ ددې تبلیغاتونـه اغېـزمن وو اوهمـداخبرې بـه یـې تکرارولې ؛ عاومخلصومسلمانانوکې ناهیلي خپـره وه اومجاهـدینوکې دافـتراق راپیداکېدوتشـویش محسوسېدلو خوآفرین داسلامي امارت پرقیادت چې دوخت حساسیت یې درک کړ؛ دصف دوحدت

ســـــاتلو اوپـــــر يواميردتولوافغانـــــانو اوخصوصاًمجاهدينو دراتولولولپاره يـې پرڅان شپه او ورځ يوه كـړه ؛ الله تعـالى يې مرسته وكړه ؛ كوښښونويې رنګ راوړ دصف وحدت پاتې شواو ټـول مسـلمانان پـه هماغـه يواميرراټـول شـول كـوم چـې اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهـد رحمـه الله تعالى خپل ځاى ناستى جوړكړى و .

رښـتيا داده چـې عـالى قـدر اميـر المؤمنين ملا محمد عمدعمرمجاهد رحمـه الله ته الله تعالى ډېر لوى فراست وركـړى و ؛ پـه خپلـوملګروكې يـې چـې دچـا انتخاب كـړى اوپـرې يـې زيـات اعـتماد كړى وهغه هماغسې وخوت څرنګه چـې ترې امېد كېدلو ؛ هغه خپل مسـئوليت پـه ډېر غوره او وياړمن ډول ترسره اودامارت حق يې ادا كړ ؛ دامارت دچارواودجهادي امورودلازيات پرمختګ لپاره يـې ډېـرې هڅې اوښه ګڼ جـدي اقـدامات وكـړل ؛ دعالي اهدافواوملي ګټودتحقق پـه لاركـې يې هيڅ سترتيا ونـه منلـه ؛ دصـف واحـد ساتلو ته يې ډېره توجو وكـړه ؛ هغـه پـه رښتيا چې داشدآء على الكفار رحمآء بينهم نمونه وه ؛ پـه بيعـت كـې تـاخير كـونكي خوپرېږده كوموتنانوچې ښكاره مخالفت وښود ،دهغوئ پرخلاف يې ترآخـره كـوم سخت تورى هـم لـه خـولې ونـه ويسـت اقدام خولرى خبره وه ؛ خوداشغالګرو په مقابل كـې دپيـل نـه دمـرګ ترسـاعته پـه كلك او وياړمن دريځ پاتې شـو ؛ نـه يـې داشغالګروغوښتنې ومنلې ؛ نه يې زور ته سرټيټ كړ نه يې ګواښونو اوفشـارونوته تسليم شو؛ نه يې دچا پروسې اوپشنهادونه ومنـل ؛ نـه دمكـارو خلكـو دتوطيـو اودسيسو ښكارشو؛ نه يې دچا فشـارونو

عزم متزلزل كړ اونه يې دچاپه وينا خپل مسير پرېښود .

دهغه داسلامي امارت دزعامت موده لنډه وه خوپه لنډې مودې كـې يـې دمتين عـزم ، كلـك ايمان اوسرلوړۍ داسې كارنامې ترسره اوتاريخ ته پرېښودې چـې تـل بـه پـرې ټـول ژمـن مسـلمانان اوخصوصاً مجاهدين وياړي اواتلولئ به يې تاريخ تل يادوي .

اميرالمؤمنين رحمه الله تعالى له نړۍ سترګې پټې كـړې خـو پـه خپـل عمـر يـې كومـه داسـې كوچنۍ خبره يا حركت هم ونكړ چې د افغانانو پرتاريخ تورتكى شي بلكې په لږوخت كې يې چې څه وكړل هغه كړنه يې تاريخ جوړونكې وه چې دا ټولو مسلمانانو لپاره دډېرې خوښۍ خبره ده .

د اميرالمؤمنين چې كوم مقام او منزالت و شايد ګڼ متعصبين بـه تـرې لاهـم انكـار كـوي خـو تاريخ به دالوړمقام اولويه مرتبه هيڅكله هم پټه نكړې او زمـانې پـس بـه ښـه پـه روښـانوټكو دده رحمه الله دلويوالي اولوړوالي خبره ترقيامته راتلونكو نسلونوته ثبت كړي.

داميرالمؤمنين دشهادت نـه پـس دامريكـا توريوسـتي ولسمشـر بارک اوبامـا دغرورنـه پـه ډک فاتحانه انداز دهغه دقتل اعتراف و كړ اوويې ويل چې ,,كه طالبانو دملا اخترمنصور په څېر دسولې اومذاكراتو پروسه رد كړه انجام به يې دخپل همدې مشرپه څېر وي ؛ په راتلونكي كې بـه دامريكـا دمفاداتودساتنې په موخه داړتيا په صورت كې دطالبانود مشر په شمول نور قيادت هم په نښـه كـړو ''

بيا يې جاپان ته دسفرپرمهال وويل ,, طالبان دې پدې پوه شي چې دوئ به بيا په افغانستان كـې واک ته ونـه رسـېږي اونـه بـه يـې حكومـت راشي ؛ افغانسـتان كـې جمهـوري دولـت شـتون لـري ،موږهمدغه دولت تقويه كوو ،،

داوباماخبرې څومره ددېپلوماسۍ ضد ؛ دوحشت اوغرورنه ډكې ؛ دحقيقت نه لرې ؛ نامعقولې اوپرتضاداتو ولاړې دي ؟! خوڅوک شته چې دده پرضد دحـق آواز پورتـه او دده دخبرونامعقوليـت اوناقانونيت په ګوته كړي ؟

اوباما دكابل اوسنۍ لاسپوڅې اداره جمهوري اداره يابه بل عبارت دولس له لـوري منتخبـه اود ولـس دخوښــې اداره بــولي داڅــومره ســپين دروغ دي ؟! كــه ولــس يــواځې پــه چوكيوبانــدې دناستولاسپوڅو ،رشوت خورو ،لوټمارانو اوملي خائنـانو نـه عبـارت وي نويقينـاً اوسـنۍ اداره ددوئ دخوښې اداره ده او دوئ يې بقاغواړي خوكه ولس دافغانستان دټولو اوسېدونكونه عبـارت وي نوبيـا هرمنصف داپوښتنه كوي چې كه دا جمهوري يا دولس دخوښې اداره وي نو ولې دافغانستان د شـمال ،جنوب ،شرق اوغرب په هرې سيمې كې افغانان هغوطالبانوته په خپلو كورونو كـې ځـاى وركـوي كوم چې داشغالګرو اوداشغالګروپه لاس درامنځته شوې ادارې پرضدجنګېږي؟

اوباما داخترمحمدمنصور دشهيدولو لپـاره وجـه دابيـانوي چـې هغـه دمـذاكراتو پروسـه كـې خنډونه جوړول .

په ټوليزه توګه ټوله نړۍ اوپه ځـانګړې ډول دملګروملتونوپـه نـوم نړيوالـه اداره بايـد پـدې خبرې غور وكړي چې آياداوباما په خبرې كې ګينې يوفيصد قانونيتوب يامعقوليت شته ؟ آياپـه نـړۍ

کې زوروروته داحق هم ورکړل شویدی چې که مقابل لوری ورسره مذاکرات نه کوي یاورته دمذاکراتولپاره شرطونه وړاندې کوي نوزورور به يې وژني ؟

د ډیپلوماسۍ خبرې څه شوې ؟ داد انسانانو نړۍ ده که دځناوروځنګل دی ؟

داخبره ډېره داهمیت وړ ده چې طالبانو خو ایله همدومره کړي چې دخپلې خاورې دآزادۍ په روان جنګ کې يې امریکایي اشغالګر عسکر وژلي دي چې دا د دوئ مشروع حق اودنړۍ دټولو قوانینو سره برابره خبره ده ؛ دادنړۍ په ټولوقوانینوکې ثبت ده چې داشغال پرضد دیوملت قیام اوجنګ کول دهغه ملت قانوني حق دی .

نوطالبانودامریکا پرضد هیڅ ناقانونه عمل ندی ترسره کړی ؛ نه يې پر امریکا یرغل کړی ؛ نه يې دامریکا یوه لوېشت خاوره قبضه کړی ؛ نه يې وربانديې کلسترېمونه غورځولي ؛ نه يې پرامریکا کیمیاوي مواد استعمال کړی ؛ نه يې په امریکا کې کوم ښوونځی ، روغتون اوکلیسا بمبارکړي ، نه يې دکوم امریکایي کور وران کړی او نه يې په توره شپه کې په کور وراوښتی ؛ نه يې دانجیل په نوم دهغه کتاب اودعیسی علیه السلام په نوم دهغه پیغمبرسپکاوی کړی دکوم چې امریکایان ځانونه متبعین بولي .

بس طالبانوهمدا کړیدي چې داشغالګرهېواد سره مذاکرات يې دقابضوفوځونوپه وتلومشروط کړیدي .

موږ دټولې نړۍ اودملګروملتونو داري نه داپوښتنه کوو چې آیادطالبانو له لوري دیوشرط وړاندې کېدل دومره لوی جرم دی چې دطالبانوقائد دې پرې ووژل شي؟

امریکایي فوځ چې پرافغانستان یرغل کړی ؛ داهېواد يې قبضه کړیدی ؛ وربانديې يې کلسترېمونه غورځولي ؛ ددې هېواد په مختلفو سیمو کې يې کیمیاوي مواد استعمال کړی ؛ جوماتونه ، مدرسې ، ښوونځي ، روغتونونه ،جنازې ، ودونه ، آباد کلي اوښارونه يې بمبارکړي ، په تورو شپو کې په کورونو وراوښتي دي ؛ دمسلمانانودمقدس کتاب قرآنکریم بې حرمتي يې کړیده نو اوباما او د امریکا نور مشران چې دهمدې فوځ مشري کوي اودهمدې اعمالو دترسره کولولپاره دا فوځونه را استوي آیا نړیواله ټولنه اودملګروملتونو اداره به ددې جرمونو نه پس بش ، اوباما او دامریکا نور مشران دقتل وړ وبولي اوآیا طالبان يې که په وژلوبريالي شي او ويې وژني دطالبانو داکړنه به تائید کړي ؟

نه هیڅکله هم نه ! ځکه چې امریکا خو امریکا ده ؛ پدې مادي نړۍ کې هغه زوروره ده ، بدماشه اودملګروملتونوپه نوم دغلامۍ اداري یواځنۍ باداره ده اوطالبان دمظلوم مسلمان ملت برخه ده نودطالبانوهره خبره اوعمل ردېږي اودامریکا هرڅه دقانون سره برابر اودمنلو وړ ګڼل کېږي .

داپوښتنه هم ډېره اړینه ده چې په نړۍ کې خو نور هم ډېر داسې څوک شته چې دامریکا سره په ډېرو امورو کې شدید مخالفت ښکاره کوي اوامریکا ته ګواښونه هم کوي آیا امریکا دومره نره ده چې دهغوئ دوژلو حق هم ځان ته ورکړي ؟

داوکراین په شخړه کې چې امریکاپه روسانوسخت تنقیدونه کول ؛ په روسانو يې تورلګولوچې په اوکراین يې حمله کړیده اودا داسې ده لکه په ټول لویدیځ بانديې حمله نوآیا امریکا دپوتین دوژلوحق ځان ته ورکولی شي ؟

امریکا ډېرې هڅې وکړې چې شمالي کوریا داتومي وسلوجوړولونه منع کړي ؛ شمالي کوریا ته دترغیب اوترهیب ، غولولو او وېرولوهره حربه يې په کارواچوله خوشمالي کوریا يې هیڅ پروا ونه ساتله ، دامریکا هیڅ فشار يې ونه منلو اوښه په جرأت يې خپل اتومي پروګرام مخ په وړانديې بوتلو ؛ ښه په نره یودبل پسې اتومي ازمویني کوي ؛ اوس دشمالي کوریا په اړه دا اوازې هم شروع دي چې هایدروجن بم جوړوي ؛ امریکا ته يې څوځلې ګواښونه کړیدي چې جاپان اوجنوبي کوریا کې شته اډې به يې نیست ونابود کړي نودشمالي کوریا په کوم مشر دډرون حملې کولوحق ځان ته امریکا ورکولی شي ؟ امریکایان خو دومره بزدلان دي چې دشمالي کوریا په نوم یادولويې لېنګي رېږي .

همدا رازدچین ، وینزویلا کیوبا اوځینو نوروهېوادونوسره هم امریکا ستونزې لري اویو يې هم خبره نه مني خو دیو هېواد دمشر دوژلواو وربانديې دحملې کولو تصور هم امریکا نه شي کولای ځکه چې امریکا بې حده بزدل دښمن دی دهغه چانه تل په سختې وېرې کې وي دچاسره چې مادي طاقت وي .

نوکه دامریکاسره دطالبانو درای مخالفت دومره لوی جرم نه وي چې دطالبانوقائد دې پرې ووژل شي نوباید اوباما چې دقتل اعتراف يې کړیدی نړیوالومحاکمو کې دمحاکمې لپاره راښکل شي او که داسې نشي کېدای نونړیواله ټولنه اوملګري ملتونه باید پدې اعتراف وکړي چې پرنړۍ دقانون نه بلکې دزور اوبدماشۍ حاکمیت دی .

دامریکا مکاره څېره طالبانو پېژندلې ده او دمنافقت نه يې ښه خبر دي نوځکه يې مذاکرات ددوئ په وتلو مشروطول او اوس چې پکې هیڅ ګټه نه ویني نوبېځي يې ردکړل .

اوباما دا ګواښ هم کړی چې که طالبانو دملا اخترمحمدمنصور په څېر دسولې اومذاکراتوپروسه رد کړه انجام به يې دخپل همدې مشرپه څېر وي ،،

هر دعقل څښتن به بې له فکر کولودا وایې چې داوباما داخبره دحماقت نه ډکه طفلانه خبره اودخپل ځان اوخپل ولس دغولولويوه ناکامه هڅه ده .

اوباما ژوندو هغو انسانانوته غږېدلوچې دټولې صليبي ټلوالې په مقابل کې يې دطالبانو تېره ۱۵کلنه مقابله مخې ته ده .

پرافغانستان دیرغل نه وړاندې اودیرغل په رومبو ورځوکې به چې امریکا کومې باتې وهلې اودغرورنه په ډک کوم انداز به يې چې طالبانوته ګواښونه کول ټولوخلکوته معلوم دي اوداهم دهرچا په علم کې ده چې دې ګواښونو د طالبانوپه ارادوکې هیڅ ډول بدلون نه و راوستی او د امریکا په مشرۍ کې رامنځته شوی دانساني تاریخ ترټولو لوی جنګي صلیبي اتحاد مقابلې ته چې د نړۍ بل یوطاقت هم د راوتلو جرأت نه شوکولای او ټول ورته تسلیم وو دملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په مشرۍ کې طالبان ددې ستر اتحاد په مقابل کې د استقامت د غر په څېر میدان کې ودریدل اوپه پوره مېړانې يې د شرمونکې ماتې سره ددې اتحاد د مخامخ کولو پورې دا پیل شوي سپېڅلي جهاد جاري وساتلوچې دا یقینا د نړۍ په سطحه بې ساري اتلولي ده ؛ پدې جریان کې په لسګونوزره شهیدان اوټپیان شول ؛ ګڼ شمېر پکې له اعضاءو نه محروم شول په لسګونوزره پکې دوحشت نه ډکو زندانونو ته لاړل خودې هیڅ هم ددوئ عزایم متزلزل نه کړل ؛ نه دخپل مسیرنه واوښتل ؛ نه دخپلو اهدافونه تېرشول ؛ نه يې دښمن ته سر ټيټ کړ او نه هم ددښمن زورته تسلیم شول بلکې دهرې ورځې نه بلې ته يې خپله مبارزه دومره ځوکمنه کړه چې ټول صليبي اتحاد يې په ګونډوکړ.

نو اوس چې اوباما ګواښونه کوي اودا ثمه ښکاره کوي چې دیو امیر په شهادت به طالبان خپله حقه مبارزه پرېږدي ؛ یابه دخپل معقول اومشروع دریځ نه واوړي اویابه هم دخپلوعالي اهدافونه تېرشي دايې لوی حماقت اودځان اوخپل ملت دغولولوناکام کوشش دی .

ټولې نړۍ ته معلومه ده چې اسلامي امارت په قوي بنستونوولاړه یوه ځواکمنه ، په ښکاره ساده خوپه حقیقت کې خورا منظمه اداره ده دکشر اومشرمقام پکې معلوم دی ؛ دهېواد دزیرکو علماءکرامو،سیاست پوهانو اوجهادي قائدینونه جوړه داهل الحل والعقد مقتدره شوری لري ؛ همدې شوری دامیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله تعالی دوفات داعلان نه پس ملا اخترمحمد منصور رحمه الله تعالی د افغانستان داسلامي امارت امیرجوړکړی و او دده دشهادت نه پس اوس همدې شوری شیخ القرآن والحدیث هبة الله آخندزاده ته په اتفاق دامارت مسئولیت وربه غاړه کړ اود مولوي جلال الدین حقاني حفظه الله ځوی ستر اتل سراج الدین حقاني او دامیرالمؤمنین ملا محمد عمرمجاهد رحمه الله ځوی مولوي یعقوب ته داول اودوهم نائبانومسئولیت ورکړ ؛که څه هم داهر یومسئولیت دلويې قرباني، غوښتونکی دی خوچې په شوری کې امارت دزبده مشرانو پرېکړه وه نودرې واړوپه سرسترګو ومنله .



دامریکا اوسني سترجنایت امریکا منافقت نړۍ ته ښکاره اوداخبره ښه روښانه کړه چې امریکا رښتیا هم خپلې موخې اوشوم اهداف په جګړې کې ویني؛ هیڅکله نه غواړي چې په افغانستان کې جګړه ودرېږي او دافغانستان ستونزه دخبرو اتروله لارې حل شي؛ امریکا یو فیصد هم په حقیقي معنوکې دطالبانوسره مذاکراتوته ژمنه نده.

دطالبانوسره مذاکرات اودوحشت نه په ډک اوناځوانمردانه ډول دطالبانو دزعیم وژل ؟!

دامریکا د دماغونه لاهم دحماقت نه ډک غرورنه دی وتی اولاهم دخپلې غلبې خوبونه ویني ؛ دکوموطالبانوپه لاس چې په پنځلس کلن اوږدجنګ کې ټول صلیبي اتحادپه ګونډو شو دهماغو طالبانونه غواړي چې وسله دې په ځمکه کېږدي اودکابل لاسپوڅې اداره دې ومني.

خوعجیبه داده چې خپلې دحماقت نه ډکې همدې غوښتنې ته نوم دمذاکراتو ورکوي.

شاید ګومان به کوي چې پدې توګه به ځان نړۍ ته سوله پالی اوطالبان دسولې مخالفین وښایې چې دایوه ناکامه هڅه ده ؛ بالفعل قابض ، اشغالګر او دسونو زروبې ګناه انسانانوقاتل به څوک سوله پالی وګڼي ؟

# طالبان
## وړتیا ښيي

اکرام الدین واصل



داسې بریښي چې طالبان له هغه حالته وتي دي چې فشارونه دې پرې اغېز وکړي. دا دی یو کال د دوی دوهم مشر۔ په نښه کړای شو. له کوره بهر او یوه نړۍ ننگونو تر منځه داسې شوخ سیاست د دوی ځراکت برسېروي. دوی چې د خپل پخواني مشر د مړینې خبر په کوم ډول پټ وساته، له معجزې کم نه بریښي. بیا یې چې د منصور له ټاکلو وروسته مخالفین څه ډول راکم کړل، دا یې بله معجزه وه. سره له دې چې ډېر خلک طالبي حرکت نه خوښوي خو موږ بـه واقعیت وینو او روښانوو بـه یې. د مذاکراتو گرماگرمي د سولې خبرې نږدې دوه زره دربیم او څلورم راهیسې وخت پر وخت اوربدل کیږي. افغانستان کې چې هر جهت مداخله لري، د سولې په اړه یو گام لري. دا چې دا گام رینښتینی دی که نه، بېل سوال دی خو طالب د خپلې داعیې له امله په هیڅ جهت باور نه دی کړی. زما خپله مطالعه دا ده چې طالب د سولې مخالف نه دی، بلکې د سولې په نوم د روانو جریاناتو مخالف دی. دا دی د حکمتیار

هر څه زباد کړل چې لـه هـر څـه تېر شو. زموږ دا هیله ده چې په هر قیمت وي سوله راشي، خو زه په نظریاتي لحاظ خبره کـوم چې طالب دې پروسې تـه د خپلې نظریې عینکې کـاروي. همـدا د دوی څیرکتیـــا ښــــيي. دوی پوهیږي چې نظریـاتي قضیه کې مسایل بریدونه لري او دا مسایل ډېـر وخـت پـر اخـرني حـرف دریږي. همـدا لامـل بـه وي چې دوی هیڅکله د سولې پروسې تـه داسې نه دي راننوتي چې د دوی معامله گري ترې وبریښي یـا یې پراگماتیـو خـوی لرلـی وي. مـوږ هیڅ ونه شو کولی چې دوی کوم سیاسي جریان تـه پـه خپلـه گټـه ننباسو. دوی چې پـه لـومړي وار موږ ته د سولې لپاره کوم شرایط راکړي تر اوسه پرې ولاړ دي. موږ په ډېره عاجزانه او مخلصانه بڼه پاکستان ته ولاړو، عدې راسره وشوې او موږ هـم دا فکـر درلـود چـې گـواکې طالـب بـه د پاکستان له اشارې هم وانه وړي خو دوی وښوده چې اصول لري، رویه لري او خپلې خبرې تـه پـه درنه گوري. د سولې وروستـي جریـان د همـدې لپاره جوړ شوی و چې طالب په هر قیمت مېز ته راکاږو خو موږ لا دومره هم ونـه توانېـدو چې طالب زموږ دې پروسې ته د اهمیت پـه سترگه وگوري. زمـوږ وروستـۍ پروسې هـر ډول فشار درلود خو دوی هر ډول فشار سره مقابلـه وکـړه. د پاکستان زوړ مشیر بالاخره اعـتراف وکـړ چې زموږ له وسې پورتـه طمع راڅخه کـول گټـه نه کوي. کله چې کابـل د پاکستـاني جنرالانـو تـگ راتگ ډېر شو دا هم د طالب د وېرولو لپاره کافي نفسیـاتي فشـار و، خـو لـه بـده مرغـه مغـرورو جنرالانـو پایلـه کـې د جاسوسـانو رول ولوبـاوه. سترگو پټولو ته اړتیا نه شته او بایـد زغـرده یې ووایو چې طالب نور نه ورکیږي، ځکه چې طالب

سیاسـت کـې ایـل نـه شـو، جگـړه یـې نـه شي ورکـولای. د منصـور وژنـه او اخنـدزاده ټاکنـه د منصور د وژل کېدو خبره رسمي جهتونـو سره لا له اوله تایید وه. ټوله نړۍ متفقانه وغږېده چې منصـور وژل شـوی، د منصـور ځایناسـتی ټاکـل کیږي، کوټې شورا غور کوي چې د ملایعقوب او حقاني تر منځه کوم یو انتخاب کړي..دې ټولـو خبرو ښه په تیقن گردش وکړ خو طالب تر هغې ونه غږېد چې خبرو تـه جـوړ نـه و. مـوږ خـو نـه پـوهېږو څـکه حکومـت د نړېـوالې وورلـی تـر سـیوري لانــدې دی خـــو پـــه رواني لحـــاظ تخمینېدای شي چې ټوله نړۍ د یو چا په اړه یـو اړخیـز بحثونـه کـوي، د دوی د راتلـونکي پـه اړه وړاندوینې کوي دا څومره فشار لـري. مـوږ چې کابل کې کومې خبرې نـه خبرېـږو او پـه اړه یـې معلومـات نـه لـرو تـر هغـې څـورېږو چـې اصـل معلوماتو ته مو لاس نه وي رسېدلای. پـه دومـره سختو امنیتي شرایطو کې د دوی اطمیناني رویه ډېره نا اشنا ده. دوی تېره تجربه هم وکاروله. دا ځل یې هغسې په څو تنو خلاصه نه کړله بلکې د ټولو رضایت یې اخیسـتی او همـدا لامـل بـه وي چې تر دې دمه تـرې د کـوم مخالفت بـوی نـه دی راوتلای. دوی موږ تـه ښـودله چـې نـور دې مسایلو سره عـادي دي. پـه همـدې ورځ چـې د منصور د وژل کېـدو خـبرې زور نیـولی و، کابـل کې یې د عدلیې بس پر بله واړاوه. جگړه په ټـول افغانستان کې د یوې دقیقې لپاره ونـه دربـده. موږ تـه چې کابـل کـې څـوک اوازه خپـره کـړي مشران مو په پاسپورتونو گوتې وهي. یو ځل چې سیاسي فضاء خړه شي تر هفتو هفتو ځای تـه نـه راځي. پـه همـدې ځـای زه حکومـت تـه مشوره ورکوم چې د طالب د ورکولو خیال دې اوبو تـه ووایي. د سولې رینښـتینې پروسـه دې د مخلصـو افغانـانو پـه همکـارۍ پیـل کـړي او طالـب دې راضي کـړي او د امریکـا پـه الوتکـو خپـل خلـک ډارول ډېره نا ځواني ده.



# د کابل له وژل شویو عسکرو سره خواخوږي...!!؟

لیکنه : موسی فرهاد

دجولای په اوله ورز کابل کې ډېری افغان عسکر ووژل شول ...

--- کیدای شي داسی ځوانان به هم پکښې کې وو چې روژه به یې وه.

--- دا ځوانان به ١٦ کاله مخکې عادي افغانان ول ، ممکن ډېری به یې هغه وخت زلمیان ول ، د مفکرینو په سیاستونو به نه پوهیدل .

--- د دې ځوانانو په وړاندې به شاید ډېرې نورې داسې خونړۍ صحنې هم تیرې شوې وي .

--- دا ځوانان به ښایي په دې هم ښه پوهیدل چې موږ د چا پر ضد تربیه کیږو .

--- ښايي دوی به دا هم لیدل چې بهرني عسکر زموږ په هیواد کې څه کوي .

--- کیدای شي په دې به یې هم سر خلاصیده چې که موږ ووژل شو ، نو دا بهرنیان به څومره راباندې خفه شي .

--- دوی به شاید په دې هم پوهیدل چې اشرف غني ، عبدالله او نور چارواکي به زموږ پر حال څه ډول افسوس وکړي ، پاکستان ته به ګوته ونیسي په فیسبوک کې به ښکنځلې ورته وکړي. او د خپلو بچیانو د حفاظت لپاره به په بهر کې نور هم زیات اهتمام وکړي.

--- دا عسکر به غالباً او یقیناً کلمه ګو مسلمانان ول ، ځکه چې افغانان وو ، په افغانانو کې ډېر لږ داسې خلک شته چې مسلمانان دي نه وي ، خو له دې سره سره یې د امریکایانو قوماندې ، تربیې ، داعیې او لارښوونو ته لبیک وایه .

--- په داسې حال کې چې دا هم ورته معلومه وه چې الله تعالی مسلمان له دا ډول عمل څخه منع کوي . بلکې ورباندې لازمه ده چې ځان به ترې ساتي . حتی ورباندې فرض ده چې په مقابل کې به یې دریږي . که داسې ونکړي نو په آخرت کې به له غټ زیان سره مخ وي .

--- ښايي دوی ته به ویل کیدل چې تاسو د وطن ساتونکی عسکر یاست، خو په زړه کې به ممکن پوهیدل چې د وطن او ناموس ساتنه دا نه ده چې د خارجي اشغالګر په امر د خپلو وطنوالو ، کلیوالو ، مسلمانانو پر ضد وجنګیږه ، بلکې د وطن ساتنه دا ده چې د خپل وطندار ورور په څنګ کې ودریږه او اشغالګر ته ځواب ورکه ، او د هغه مقابله وکړه ، ښايي دا عسکر به په زړه کې ښه پوهیدل چې اصلاً وطن ساتنه او ناموس ژغورنه همدې ته وايي ، چې د تیري کوونکو کافرانو مرسته نه بلکې مقابله وکړه، چې دا د فطرت تقاضا هم ده ، د مؤمن مسلمان شان هم دی ، او د ملی احساس لرونکي انسان ملي وجیبه هم ده .

--- وژل شوي عسکرو ته به دا هم معلومه وه چې زموږ نیکونو ولې ټول عمر د خارجي یرغلګرو ملګرتیا ته د کرکې په سترګه کتلي ، ولې یې د هغوی په مقابل کې بې ساري قرباني ورکړي ،



--- دا عسکرو ته به ښایي دا ښه جوته وه چې په تاریخ کې چې چا د یرغلګرو ملګرتیا کړې ؛ تاریخ په څه نامه یاد کړي او چې چا ورسره جهاد او مقابله کړې ؛ د تاریخ پاڼو په کوم نوم لیکلي دي .

--- کیدای شي دوی په دې هم پوه ول چې نن سبا چې موږ څوک د خپلو تاریخي اتلانو په نوم پیژنو ، آیا هغوی د خارجي یرغلګرو په ملاتړ اتلان شوي او که یې په مقابل کې د درېدلو له کبله اتلان بلل شوي.

--- ښایي دغو عسکرو به یو وخت له ځان سره دا فکر هم کړی وي چې زه ولې اوس د دې مستحق ګرځیدلی یم چې یو ځوان را باندې فدایي برید وکړي ، آیا هغه له ما سره د پټې پر سر دښمني کوي ، آیا هغه رښتیا د پاکستان لپاره ما وژني ، که د الله تعالی لپاره .؟

--- د دې عسکرو خپل خپلوانو به ښایي دوی بیا بیا پوهولي وي چې تاسو که د کافرانو په مقابل کې د جهاد کولو توان نلرئ ، نو لږ تر لږه ورسره ملګري کیږئ خو مه ولې چې دا مو د دنیا او آخرت د تباهي لامل ګرځي .

--- نو چې ...

په دې هرڅه باندې ښه پوهیدل ، او بیا یې هم ناسمه لاره په مخه اخیستې وه ، بیا یې هم د کابل د نا أهله حکمرانانو په په سرپرستۍ کې د خارجي اشغالګر کافرانو خدمت ته ملاتړلې وه ، او بیا یې هم د دوی له نورو لارویانو څخه عبرت حاصل نکړ ، بیا یې هم هغه څه کول چې د دین ، وطن ، ناموس او خپلو خلکو پر ضد عمل وو ، بیا یې هم د آخرت له حساب کتاب څخه ځانونه غافله کړي وو ، بیا یې هم د غربي رسنیو شیطاني ډنډورو ته غوږ نیولی وو ، بیا یې هم د عقلونو پردې امریکایي ډالرو مسخه کړي وې ، او بیا یې هم د مجاهدینو برحقه داعیه د شیطاني رسنیو او سیکولرو چارواکو په خوله پردې او ناسمه تعبیروله؛

--- نو آیا ...

د ملامتیا ګوته به بیا هم له دوی پرته بل چا ته نیوله کیږي .؟! آیا ملامت به هغه فدایان مجاهدین وي چې د الله تعالی د رضاء لپاره یې دوی ووژل ؟ او که به دوی (عسکر) ملامت وي چې د امریکا لپاره یې ځانونه ووژل . ..؟!

د عبرت اخیستلو لپاره همدا کافي دي .

فاعتبروا یا أولی الأبصار .....الآیة




# تهاجم فرهنگی و ابتذال اخلاقی

**م - یحیی**

در تاریخ بشریت عنوان‌های بی‌شماری از نبرد پاکی‌ها و آلودگی‌ها به چشم می‌خورد. اکثریت آلودگی‌ها جهت ثبت نمودن عنوان‌های ترقی خود از سرمایه‌های مادی و در حال فنا بهره جسته‌اند، و در این زمینه مادیات را ابزار سرکوب کننده‌ی پاکی‌ها در تولید انواع فسادهای خانمان‌سوز به کار برده‌اند، ولی پاکی‌ها تنها از سرمایه‌ی دین مبین اسلام جهت سرکوب آرمان‌های آلوده و خانمان‌سوز استفاده نموده‌اند؛ این نبرد پاکی‌ها و آلودگی‌ها در قرن‌های مختلف در جریان بوده و هر کدام از سربازان پاکی‌ها و آلودگی‌ها در مقابل یکدیگر انواع جبهه گیری‌ها نموده و در هر موقعیت از حیات بشر ناهماهنگی‌های دو جانبه مشاهده می‌شد.

موسیٰ علیه السلام خواست که اطرافیان فرعون را به مسیر فلاح رهنمون سازد، ولی فرعون در مقابل اقدام موسیٰ علیه السلام از پای ننشست و به وسیله‌ی قدرت مادی خویش اعلان ربوبیت نمود؛ ولی حرکت موسیٰ علیه السلام حرکتی بود که از عمق معنویات سرچشمه می‌گرفت که در نتیجه فرعون با آن قدرت پوشالی خود در دریا غرق شد.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم همچنان از جانب خداوند به این سبب رسول مقرر شد که اندیشمندان زمان را که سراسر غرق مادیات شده بودند و از تدبیر معنوی چیزی به همراه نداشتند، با تعالیم روح بخش اسلامی و ایمان وصل گرداند. رسول اکرم صلی الله علیه وسلم با یک چشم به هم زدن ظلمت حاکم در قریش را به نوری بی همتا تبدیل نمودند که در پرتو این نور مبین هزاران نفر که در جهالت فروع رفته بودند، مسیر خود را باز یافتند. مدت زمانی که از رحلت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم می‌گذرد در خلأ مجاهدت‌های امر به معروف و نهی از منکر، فساد در خانه‌ی فسادسازی خود آن چنان پیشرفت نمود که چیزی از سیرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم و اصحابش رضوان الله علیم اجمعین جهت تقلید هم مشاهده نمی‌شود، کفر اندیشان و قدرت طلبان غربی از ناحیه‌های مختلف در مسیر شکار روح بی آلایش جوانان مسلمان دام گسترده‌اند؛ در اولین حرکت، سیرت اسلامی جوانان را به کسوت غربی تبدیل نمودند، تنها علامتی که یک مسلمان را با غیر مسلمان معرفی می‌نمود، وجود محاسن بر روی صورت مسلمان بود؛ اما چنین استنباط می‌شود اگر چنانچه یک سنت از سنن آن حضرت صلی الله علیه وسلم زیر پا گذاشته شود به همان اندازه سیرت نیز تغییر می‌یابد.

تهاجم‌های فرهنگی که منجر به مسمومیت اخلاقی جوانان شده، بسیارند و نمی‌توان آن‌ها را در یک مقاله کوچک و مختصر گنجاند.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرهنگ فرو رفته در جهالت را تبدیل به فرهنگ ارزشمند اسلامی نمود و در واقع با برخاستن رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تمامی نقشه‌های دشمنان کینه توز یهود و نصاریٰ بی نتیجه ماند و سکان‌داران یهودیت و نصرانیت میراث آبا و اجداد خویش را که همان تولید فسادهای خانمان‌سوز بود به شیوه‌های جدید ادامه دادند؛ مثلا روشنفکران غربی برای مُدها مسابقه گذاشتند، انواع فیلم‌های مبتذل و رایگان را به سوی کرانه‌های اسلام‌خیز گسیل

داشتند. سرمایه‌های هنگفتی در این زمینه صرف کردند تا این که قدرت طلبان غربی بتوانند روح اسلامی جوانان مسلمان را به روح طغیان‌گرایانه و انحراف‌پذیر تبدیل نمایند. از این حرکت‌های کینه جویانه نمی‌توان به سادگی درگذشت.



اکنون موقعیت اجتماعی مسلمانان آن قدرتی را می‌طلبد که بتواند در مقابل قدرت طلبان غربی با یکپارچگی اتحاد و تمسّک به قرآن و سنت آن حضرت صلی الله علیه وسلم ایستادگی کند. همچنان که فسادسازان غربی با یک فیلم مبتذل شخصیت واقعی جوانان ما را تغییر می‌دهند، اگر ما هم از ابزارهای موجود که همانا امر به معروف و نهی از منکر یا اتحاد یکپارچگی و صداقت که از ناحیه‌ی اسلام در اختیار ما قرار گرفته با شیوه‌ای درست استفاده نماییم، بازدهی‌هایش کمتر از تولیدات غربیان نخواهد بود. بازار در اختیار فسادسازان قرار گرفته است و محیط آن مجموعه‌ای از آلودگی‌هاست، طبیعتاً بوی تعفّن فساد و آلودگی‌ها بر روح و روان ساکنین محیط سرایت می‌نماید، ولی محیط اسلامی مدارس دینی مراکز تبلیغی یا همایش‌های اسلامی این اثر را تا حدودی زائل کرده‌اند.

هنگامی که تبلیغات اسلامی ما تبلیغات مؤثری باشد، همه‌ی پروانه‌های سرگردان خود را به دور شمع منور اسلامی می‌رسانند و روح آن‌ها که در گرو افکار غربی است، به روح اسلامی تبدیل می‌شود. متأسفانه! در جامعه‌ی موجود که ظاهراً جامعه اسلامی را تشکیل می‌دهد، ناهماهنگی‌ها و ابتذالات اخلاقی بی‌شماری به چشم می‌خورد که در شأن یک جوان مسلمان نیست. جوان مورد نظر را به عنوان یک فرد مسلمان می‌شناسیم، ولی! رفتار و برخوردهایش در مسیر فرهنگ غربی همچنان فسادساز است؛ غربیان با این حربه در میان ما نفوذ نموده‌اند و برای اجرای دستوراتشان از خود ما نمایندگانی را گماشته‌اند که این نمایندگان با وجود این که دین اسلام مخدرات و مشروبات الکلی را تحریم نموده، منتشرکنندگان این محرمات خانمان‌سوز هستند.

اکنون می‌توانیم با پیروی از او امر خداوند متعال و رهنمودهای نبی مکرم اسلام و اجرای سنت آن حضرت صلی الله علیه وسلم تمامی نقشه‌های غربیان را خنثی نماییم و نگذاریم بیشتر از این، سم‌های سوغاتی غربیان روح و روان ما را مسموم نمایند و شعله‌های سوزان مخدرات غیرت و وجدان جوانان ما را به خاکستر تبدیل نموده که مشروبات الکلی زاینده‌ی هزاران فسادهای دیگر است.

بیاییم بار دیگر با خدای خویش عهد کنیم که با امر به معروف و نهی از منکر به اصطلاح خویش و هم‌نوعان خود بپردازیم و فرهنگ اسلامی را به جای فرهنگ منحطّ غرب در جامعه، شهر، کشور و سراسر گیتی نهادینه کنیم.

**و در آخر نتیجه را در چند بیت از اشعار علامه اقبال لاهوری (رحمه الله) خلاصه می‌کنیم:**

ای غنچه‌ی خوابیده چو نرگس نگران خیز /*/ کاشانه‌ی ما رفت به تاراج غمان خیز

از ناله‌ی مرغ چمن از بانگ اذان خیز /*/ از گرمی هنگامه‌ی آتش نفسان خیز

خاور همه مانند غبار سر راهیست /*/ یک ناله‌ی خاموش و اثر باخته آهیست

هر ذره‌ی این خاک گره خورده نگاهیست/*/از هندو سمرقند و عراق و همدان خیز

از خواب گران خواب گران خواب گران خیز




# په افغانستان کې امریکایي حضور

# دسیمې لپاره ستر ګواښ جوړشوی!!!

حسن خیل

امریکا اوس په افغانستان کې دشکست او ناتوانی هغه حد اود رسوایی هغې پولي ته رسیدلي، چې نه خپل ولس او نه نوري نړۍ ته ددې خبري قناعت ورکولای شي، چې دکومو دلایلو له مخې په افغانستان کې خپل اشغال اویرغل ته دوام ورکوي، څکه دیوې نیمې لسیزي په اوږدو کې یې ټولي ستراتیژۍ، پلانونه اودعوې یې یو په بل پسې ناکامي او کاذبي وختي !!

له همدې امله دامریکاحضور دامریکا دغلامانو او جاسوسانوپرته نور هیچا ته دمنلو او زغملو وړندی .

نو اوس امریکا په دې دسیسه کار کوي چې په څه ډول دافغانستان اوسیمي لپاره یو نوی اور بل او امریکا په همدې پلمه په سیمه کې خپل حضور حفظ او اوږدکړي.

امریکایانو دیوې نیمي لسیزي په اوږدو کې دافغانستان دپلازمیني په شمول په یوه ښارګوټي ، یوه ولایت اوحتی په یوې ولسوالی کې هم امنیت تامین نشو کړای ، دخلکو دژوند بنیادي غوښتني یې ورپوره نکړي ، دکابل رژیم یې دنړۍ دمفسدو رژیمونو اوناامنه هیوادونو له کتار څخه راونه ویست، دافغانانو دفقر او بې وزلی کچه نوره ددربدري خواته بوتله، له افغانستان څخه په لکونو استعدادونو او په ملیونو ځوانانو بهر ته په تیښته مجبور شول اوداسې نور ......

له بل لوري ، هغه طالب چې امریکا هیڅکله دخپلې مقابلي وړ نه باله او دهغوئ له منځه وړل یې دڅو ورځو او میاشتو کار باله ، هغه الله تعالی په داسې یو قوت او ځواک ورته بدل کړ ، چې نه یې د جنګي ماشین اوپوځي تکنالوژۍ وس پرې ورسیده او نه یې هم مجهز لښکر دا توانایی پیداکړه چې په یوه وړه سیمه کې هم دطالب او حرکت او خوځښت دفع او مخه یې ډب کړي، برعکس یې دامریکا اوناټو له پرمختللي !! پوځ څخه داسې کوکاري وویستلي، چې اوس هم که هغوته افغانستان او طالب څوک ورپه یادکړي نو په جنون رازي او خبره به یې تر خودکشی رسیږي.

په هغه سربیره طالب دهیواد په ۸۰ فیصده برخه خپل تسلط او حضور ثابت او حاکم وساته ، دولس مصالح او ستونزي یې درک کړي ، دشرایطو اوحالاتو له ایجاب سره سم یې په هرولایت کې منظمې دولتي اداري جوړي او فعالي کړي ، ، تردې چې عام ولس دلاسپوڅي رژیم پرځای په خپله خوښه او رغبت وغوښتل او غواړي چې ذات البیني ستونزي اونور مسایل داسلامي امارت شرعي او قضایی مراجعو اونورو ذیربطه اورګانوته وروړي او هغوئ یې ورته حل اوفصل کړي .

امریکایانوچې دطالب نه ماتیدونکی قوت او ځواک ولید او دکمزوره کولو لپاره یې بله حربه په لاس کې نه وه ، نوتیرکال یې دداعش فتنه او پروژه جوړه او دافغانستان په ختیځ اونورو برخو کې یې په کار وګمارله، ترڅو داسې یو اور بل کړي، چې هم افغانستان پکې وسوځي اوهم ټوله سیمه په لمبو کې را ونغاړي او دعراق اوسوریې په شکل دغه منطقه اوسره پیوند

هيوادونه دبارودو سره بتي وګرځــوي ، خو طالــب بيــا هغــه نجــات ببښــونکي ځواک او لښکر وو چې دمدبرانه عزم او پخې ستراتيژۍ په نتيجه کې يـې پــه ټول هيــواد کــې داعــش تــه منســوبې ډلې ټپلې اوداختطاف خواره واره باند ونـــــه دړي وړي او ســــــيمې يــــې ورنه تصفيه او ستره وګرځولي .

امريکايــان چــې پــه دغــو ټولــو شيطانتونو او حربو کې ناکــام او مــخ يې تور شو اوپه زړه يې کلکــه داخــبره مهر شوه چې طالب نشي مــاتولی نــو اوس يې تازه دم دې کار ته متې بــډ وهلې چې په څــه ډول ، افغانــان لــه خپلــو ګاونــډيانو سره پــه عمــلي اوابدي شخړه واړوي ، چــې لنــډ مثــال يې له څه مودې راهيسې دتــورخم پــه پوله خوري وري جګړې او تاوتريخوالی دی .

شک نشته که چيري دافغانســتان ديــوې لويشـــتې خـــاوري دګټلـــو او دفاع خـبره راشي او طالــب پــوه شي چې دا په ربښتيا افغاني داعيه ده ، نو تربل هرچا زيات به ننګيالی طالب د غـــه ميـــدان تـــه وردانګـــې اودسر په بيه بــه ترينــه ننګــه کــوي ، خــو دتورخم په پوله اوسنی شخړه له هرډ ول شـــک او تـــردد پرتـــه امريکايـــانو رامنځتـــه کـــړې ، پـــه دې معنـــا چــې ګاونــډي هيــواد پاکســتان تــه وايي چې په پوله دروازه جوړه کړه او افغانانو ته وايی چې مه يې پرېږدی

دامريکاهـدف دادی چـې پـه دې حساسو شرايطو کــې نــور هــم دواړه لــوري پــه دښــمنۍ او جګــړه کــې ښکيل کړي اودواړه طرفونه تلفــات او زيانونـــه ووينـــي ، پـــه پـــای کـــې دواړه خـــواوي مجبـــوريږي چـــې امريکايـــانو تـــه مراجعـــه وکـــړي او هغـــه بـــه بيـــا پکـــې دځـــان پـــه ګټه کومه بلـه اسـتعماري طرحــه او دسيسه حکم فرما وګرځوي .

مــونږ پــه واضــحو ټکــو وايــو چـــې دافغانســـتان، پاکســـتان او ســـيمې لپــاره امريکــا زهرقاتــل ده ، هغــه بــه ارومــرو پــه افغانســتان او ســيمه کــې داســې اور بلــوي چــې دواړه مسلمان ملتونه پکې وسوځي او امريکــايی ترينــه ګټــه پورتــه کــړي ، کــه داســې نــه وي امريکــا خــو دکابل لــه مــزدور رژيــم سره امنيتــي تړون هم لاس ليــک کــړی او پــه هغــه مهال يې تود شعار داوه چې دغه تړ ون دافغانـــانو پـــه ګټـــه او نفـــع ده، ځکــه دګاونــډيانو لــه مــداخلې او لاس وهنې به په امان کې پاتې شي !!!!



خو نن هرچا وليدل چې دکابل او اسلام اباد ترمنځ شخړه راغله امريکا پکـــې دچـــا لـــوری ونيـــوه او پـــه اصطلاح دامنيتي تړون په رڼا کې يــې دافغانانو کومه دفاع او ساتنه وکړه؟

دافغانستان ، پاکستان ولسونه او نور ګاونډ اومنطقه دې په دې خبره خپل غوږونه خلاص کړي چې امريکا ددغـــو ټولـــو هيوادونـــو او ولســـونو لپــاره خطرنــاک او لــه تبــاهی ډک پلانونـــــه راوړي، دخيـــر او مرســـتې تمه خو ترينــه يــو واري نــده پکــار ، بلکې په دې خبره عاجل سوچ او فکر پکـــار دی ، چـــې پـــه څـــه ډول ددغه ښامار له خولې څخه خپل وګړ ي او ملتونه وژغورل شي.

اودحل مناســبه لار يــې همــدادده چې دامريکا په ضـد کلکــه هماهنګــي رامنځتـــه اوجـــوړه شي او يـــا لـــږ ترلږه دطالب دبرحق مســير پيــروي او هرډول مرسته وشي.

# اې زما مسلمانې خورې!!!

ليکوال: نقيب الله (( احمدي))

د وخت او حالاتو تور تم، د غرب وحشي- تمدن زموږ ډېرې مسلمانې خويندې له کورونو را و ويستې. د اسلامي حجاب دنګ منارونه يې را ونړول زموږ اسلامي او کلتوري حجاب يې داسې بې ارزښته کړ، چې په خپل افغاني لباس د غرب ليلام ته ډېر ارزښت ورکول کېږي.

لکه څنګه چې زما خطاب مسلمانو خويندو ته ده، نو زه ورته وايم چې زما مسلمانې خورې! ولې ځان درته دومره بې ارزښته ښکاري، چې لوڅ مخ بازار ته را وځې او د حسن لېونې دې له ښکلا نه خوند اخلي. الله پاک خو تاته دومره قيمت درکړی، چې جنت يې ستا تر قدم لاندې ګرځولی، ولې دې ځان دومره بې قدره کړی دی.

ته چې مادياتو، سينګار او د نفس خواهشاتو ته په پرهېزګارۍ، حيا، عفت او پاک لمنۍ باندې ترجيح ورکوې، او په اوسني عصر- کې د ښځو او بشر- د حقوقو ناري وهې ان تر دې چې د شريعت په حريم باندې ګذار کوې او ځان له نارينه و سره مساوي بولې، او برابر حقوق غواړې وايې چې موږ ته د نارينه غوندې حقوق نه را کول کېږي.

په الهي قانون او پرېکړه رضايت نلرې، هر وخت دا شعارونه ورکوې چې ښځو ته په ميراث، نکاح، ازادۍ او خپلواکۍ کې هېڅ ډول حق نه ورکول کېږي، په دولتي چارو کې د سړيو په اندازه ونډه او اجازه نه را کول کېږي.

خو افسوس زما خورې! چې تا پر دې هم سوچ کړی وای چې په غربي ديموکرسۍ کې ستا د حيا او عفت لمن څومره داغداره شوې ده کفري دسيسو ستا د سپېڅلي پړوني څومره سپکاوی کړی دی.

ايا تا کله دا شعار پورته کړی، چې ولې د ښار په هر دوکان کې په بې ارزښته توکيو د بې حيا ښځو بربنډ انځورونه ليدل کېږي، او موږ ولې دومره بې ارزښته يو چې د تلويزون په هر چينل، اخبار، فلمو، او ننداريتونو کې زموږ په سپېڅلي شرف، حيا او انساني کرامت باندې لوبې کېږي.

ايا کله هم ستا سر په دې ناروا باندې خلاص شوی، چې ولې په بازار کې په ډېر ناچيزه شي ستا لوڅ انځور کښل شوی دی، ايا ته رښتيا دومره بې ارزښته او بې حيثيته يې چې خلک دې د بازاري توکيو په څېر استعمال کړي.

**زما خورې!** پر دې بايد سر خلاص کړې، چې دا ټولې لوبې د حقوق بشر او کفري اينجو ګانو دي چې پر تا يې کوي. زما په نظر ته که دا بې حيايي خوښوې او عمل پرې کوې، د اسلامي نړۍ پر تنده تو داغ يې د مسلمانانو د وروسته پاتې کېدو عامل يې. که ته د تمدن په نامه چا غولولې يې نازکې او نيم بربنډې جامې اغوندې او بازار ته د سړيو مخ ته ور وځې نو پر دې پوی شه، چې انسانان مخکې له تمدن څخه لوڅ ګرځېدل څومره، چې تمدن ته داخليدل هغومره يې ځان او عورت پټاوه، خو اوس چې تمدن اوج ته رسيدلی ولې اسلامي حجاب درته قفص ښکاري؟ تا چې کوم اسلامي او افغاني لباس اغوستی دا ډېر د لوړ تمدن ځرګندونه کوي په هېڅ ډول د وروسته پاتې والي او شاتګ په معنا نه دي، خو د ځان بربنډول تا بيرته هغو زمانو ته ستنوي چې انسانان پکې لوڅ ګرځېدل.

**اې خورې!** ايا د خپلې ابرو، عزت او حياء له قيمت نه خبره يې راځه پوی شو، چې ستا عزت او ابرو څومره قيمت لري؟!

د اسلام په تاریخ کې په لسګونو مثالونه شته، چې مسلمانو مېرمنو خپل عزت ته د خطر په وخت کې ځانونه ژورو ځاګانو ته غورځولي، یا یې له لوړو منزلونو ځانونه ښکته را اچولي دي او د خپل مرګ په بیه یې خپل عزتونه ژغورلي دي، تر څو د اسلام د سپېڅلي دین پر تندې تور داغ نه شي.

د مدینې د یهودیانو په بني قینقاع بازار کې یهودي زرګر یوه مسلمانه مېرمن سرتوره کړه او هغې مسلمانانو ته فریاد وکړ، چې ژر یې یو مسلمان مرستې ته ور ورسېد او زرګر یې په یو ګوزار جهنم ته ولېږه.

کله چې دا خبره نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ورسېده نو هغه د بنو قینقاع قبیلې ټول یهودیاند ابد لپاره له مدینې وشړل.

عربۍ ناهیدې له سند نه د خپل عزت د خوندي ساتلو په خاطر په خپلو وینو لیک ولیکه او د وخت واکمن حجاج بن یوسف ته یې ولېږه، چې دا لیک تر اموي خلیفه ولید بن عبدالملک پورې ورسېد، د هغه په سترګو کې یې اوښکې ډنډ کړې او د سند په خلاف یې د جهاد اعلان وکړ، چې دولس زره لښکر یې د اوولس کلن سپه سالار محمد بن قاسم تر قوماندې لاندې سند ته ولېږه، چې ناهیده یې را ازاده کړه. له رومیانو سره یوې بندي مسلمانې مېرمنې چې کفارو زوروله بې اختیاره د وخت خلیفه معتصم بالله ته د وامعتصما! چیغه له خولې ووته؛ یوه مسلمان واورېده او نېغ د معتصم دربار ته ورغی او مسلمانې مېرمنې فریاد یې ورته وساوه، معتصم چې یو ځوان خلیفه و وینه یې په جوش راغله او د اتلس زره لښکر په بدرګه یې د مسلمانې خور فریاد ته لبیک و وایه او هغه یې د کفارو له بنده را ازاده کړه.

میوندۍ ملالې د خپلو خویندو د عزت په خاطر، چې انګرېزي ښکېلاک په افغانستان کې پاتې نه شي؛ او زما د خویندو درانده پړوني او حیاء ته خطر پېښ نه شي، د میوند په ګرمه معرکه کې د غازیانو لوېدلی بیرغ په خپلو منګلو پورته کوي، او په تندریزو ټپو سره د غازیانو ولولې را پاروي او خپله توره په لاس کې اخلي او تر هغو جنګېږي تر څو یې د شهادت جام نوش کړ، چې د میوند جګړه د دې د غیرت په پایله کې افغانانو وګټه.

کابلۍ ناهیدې د یو جنګسالار چې د دې د بې عزتۍ هڅه یې کوله، خو دې ته خپل عزت دومره ګران و؛ چې د مکرویانو د یوه بلاک له سر څخه یې ځان را وغورځاوه، او د حجاب د شهیدو په لست کې یې خپل نوم ولیکه. هلته په ابوغریب زندان کې یوه مسلمانه مېرمن د بشر د حقوقو د عوده دارانو دومره وزوروله، چې نوره یې حوصله تنګه شوه د خان ژغورنې او ځان وژنې وسایل ورسره نه و، بالاخره یې خپل سر د زندان له دېواله سره تر هاغه و واهه تر څو یې ماغزه باد باد شول او د زندان په دېوالونو سریښ شول، او خپل غمځپلی روح یې د کایناتو رب ته وسپاره.

**اې خورې**! په غرب کې ستا مسلمانې خویندې د حجاب په ګنا له هر راز انساني حقوقو بې برخې دي، د حجاب اغوستو په جرم دولت ته ټیکس او مالي جریمه ورکوي، د حجاب شهیده مروا شربیني د جرمنې په ډکه محکمه کې د چاقو اتلس ګوزارونه خوري، او د حجاب اغوستو په ګناه سورۍ- سورۍ کېږي؛ خو ته اې خورې! چې په خپله خوښه د عفت او عزت ویاړ له ځانه لېرې کوې، ایا کله دې دا سوچ کړی دی، چې د قیامت په ورځ به له شهیدې ناهیدې او مروې سره په کومو سترګو مخ کېږې؛ هغوی به خپل ټوټې- ټوټې بدن الله جل جلاله ته وړاندې کوي، چې موږ د خپل عزت، ابرو او حجاب د ساتلو په خاطر داسې شو، او ته به وایې چې ما په خپل اختیار خپل درونډ پړونی وغورځاوه. ایا ته به څنګه له شهیدې سمیې سره مخ کېږې چې د خپل ځان د قربانۍ په قیمت یې د اسلام د شهیدانو په سر کې خپل نوم ولیکه او مسلمانو خویندو ته یې په تاریخ کې یو زرین باب پرانیست، او ته په خپله خوښه اسلامي ارزښتونو ته شا کوې، او له اسلام څخه په تېښته یې!. ایا ته به هغو ځلمو ته څه ځواب وایې، چې د معتصم او محمد بن قاسم د پوځ تر قوماندې لاندې یې د خپلو خویندو د ازادۍ او عفت ساتلو په خاطر خپلې خیالي ځوانۍ قربان کړې دي، اوس هم داسې ځلمي شته چې ستاسو له عزت، ابرو او عفت نه ځانونه ځانونه لوګی کړي، خو که تاسو لږ غیرت وکړئ او خپل عزتونه لیلام نه کړۍ.

**اې خورې**! دا یو څو نمونې وې چې ستا مخې ته مې کېښودې اوس به

لړ څه نا څه د خپلې ابرو، حیاء او عفت قیمت درته ښکاره شوی وي، چې د یوې مسلمانې خور د عزت ساتلو په خاطر په سلګونه او زرګونه ځلمي خپلې تاندې ځوانۍ قربانوي. مسلمانې خور ته خپل عزت، ابرو ا وعفت دومره ګران دی، چې مرګ قبلوي خو خپله حیاء او عزت نه پلوري، ان دومره تحمل هم نه لري، چې څوک یې د غیرت پړوني ته په بد نظر وګوري، چې په نتیجه کې یې څوک په چاقوګانو سوری-سوری کېږي، او څوک له لوړو منزلونو نه ځان ښکته را خطا کوي او څوک تر هغه خپل سر د زندان له دېواله سره وهي تر څو یې ماغزه باد-باد شي؛ اې خورې ته چې نن خپله ښکلا، ابرو او حیاء د دیموکراسۍ بازار ته په وړیا توګه وړاندې کوې، او بې بندوباره خلک ورته خوند اخلي، ایا دې شهیدو خویندو ته د حساب او کتاب په ورځ څه ځواب وایې؟ هغوی به درته وایي، چې موږ د خپل عزت او د اسلام د عزت ساتلو په خاطر مرګ غوره کړ، او خپلې ځوانۍ مو له خپل عزت نه قربان کړې؛ تا ولې په وړیا توګه خپل حسن بازار ته وړاندې او اسلام ته دې په سپکه وکتل ایا ځواب در سره شته؟

اې خورې! قسم په خدای ستا عزت دومره قیمتي دی، چې زرګونه ځوانان خپل سرونه ستا له عزت نه قربانوي. اې خورې! ته له دې نه ډېره لوړه یې، چې د فاسقانو سترګې ستا په لور کږې وي، او له دې ډېره قیمتي یې چې د بازار لېوان دې وداړي، داسې فکر مه کوه چې په پرده او حجاب کې بې پروایي کومه مهمه خبره نه ده، بلکه هغه ګنا او د الله جل جلاله له امر نه نافرماني ده. الله جل جلاله فرمايي: ((وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى)).

ژباړه: او کېنئ ( اې ښځو!) په خپلو کورونو کې او مه ښکاروئ ( خپل ښايست پردیو سړیو ته) په شان د ښکارولو( او ښایست) د جاهلیت د ړومبنیو (ښځو).

دا رنګه الله جل جلاله فرمايي: ((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَنْ يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ)).

ژباړه: اې نبي! و وایه خپلو ښځو او خپلو لوڼو ته دې او د ( نورو مؤمنانو) ښځو ته چې خواره او پټ دې کړي خپل ټول ځانونه په خپلو ټیکریو او پړونو کې، دغه پټول د بدن نږدې دي دې ته چې وپېژندل شي دوی ( چې اصیلې دي) نو ضرر به و نه شي رسولای دوی ته ( د وینځو په ګمان).

جلابیب یا جلباب هغه لباس ته ویل کېږي، چې یوه ښځه له سر نه تر پښو پورې پکې پټه وي، او شاید د حجاب شرایط به در معلوم وي خو یو ځل بیا یې هم یادونه درته کوم، حجاب اته شرطونه لري، چې مسلمانه مېرمن یې باید مراعات کړي.

لومړی: حجاب باید د ښځې ټول بدن پټ کړي، لباس باید ټول بدن پټ کړي نن سبا ښځې لوڅ مخ بازار ته وځي چې دا حرام او ګنا ده.

دویم: د ښځې لباس او چادري باید ضخیمه او ډبله وي نازکه او نری باید نه وي، ځکه خلک د فساد خواته بیایي، او دا د قیامت له علامو څخه ده، او نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، چې زما په امت کې به داسې ښځې پیدا شي، چې لباس به یې پر تن وي مګر لوڅې به وي... او دوی به جنت ته نه داخلېږي بلکه د جنت بوی به یې هم تر پوزې و نه رسېږي.

دریم: د ښځې لباس باید پراخ او ازاد وي تنګ او چسپ به نه وي، چې اوس اسلامي امت له دې فتنې سره مخ ده، کفري نړې بازار ته نوي فېشني تنګ او چسپ لباس وړاندې کوي تر څو مسلمانه ټولنه پرې بې لارې کړي.

څلورم: هغه لباس چې مسلمانه مېرمن یې اغوندې په خپله همدا لباس زینت او ښایست نه وي، داسې لباس چې د ښځې د حجاب سبب شي د هغې د ښکلا سبب کېږي او د نارینه و توجه ځان ته جلبوي، چې مسلمانې خویندې باید له داسې لباس نه ډډه وکړي.

پنځم: د مسلمانې ښځې لباس باید د نارینه د لباس سره ورته والی او مشابهت ونه لري، نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې زما له امت څخه نه دي هغه ښځې چې ځان له نارینه و سره مشابه کوي، او هغه سړي چې ځان له ښځو سره مشابه کوي.

شپږم: له کوره د باندې باید د ښځې لباس معطر او خوشبویه نه وي، ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: هره ښځه چې په ځان عطر و وهي او له کوره ووځي، او د خلکو له مخې تېرېږي او هغوی یې د عطرو بوی

احساس کړي دا ښځه زنا کاره ده، او هر ځوک چې هغه ویني هغه سترګې زناکارې دي.

اووم: مشهور لباس به نه وي، چې د هر چا توجه جلبوي بلکه عادي لباس باید وي.

اتم: د غیر مسلمانو ( کفارو ) د ښځو له لباس سره به مشابه نه وي ځکه د کفارو ښځې خو هسې هم د حیاء په غم کې نو هر رنګه لباس اغوندي او د خلکو په مخ کې د خپل ښایست تظاهر کوي.

**خورې!** ستا لپاره دا هغه پټمن حجاب ده چې الله جل جلاله او د هغه رسول درته خوښ کړی ده، نور اختیار ستا په لاس کې چې د خپل خالق او خپل رسول لاره ځان ته خوښوې او که غربي لباس خوښوې، خو زه دومره درته وایم چې اسلام تاته عزت در وباښه او ته یې د ټولنې په مهمو غړیو کې حساب کې کړې، ته یې د عدل او مینې په ځادر کې وپېچلې.

د اسلام لومړۍ قبلوونکې ستا مور حضرت خدیجه رضي الله عنها د، او لومړۍ شهیده یې ستا خور سمیه رضي الله عنها ده، چې ستا لپاره د اسلام په تاریخ کې ستر ویاړ دی.

ستا مور او پلار چې ته په اسیې، مریم، خدیجې، سمیې، اسماء، زینب، عایشې، فاطمې، صفیې او رقیې سره و نومولې دا ځکه چې ته د هغوی پر قدم لاړه شې، او د هغوی نمونه په دې زمانه کې خلکو ته ور وښایې!.

زما خورې! نن سبا چې غربي نړۍ ستا په حجاب پسې را اخیستې ده او غواړي ستا دروند پړونی ستا له سر ځخه وغورځوي، او په رنګا رنګ توطئو او بهانو سره غواړي اسلامي حجاب مسخره کړي، او تا هم داسې بې قدره او بې قیمته کړي لکه د غرب ښځې، په غرب کې تر ټولو وړیا شی چې موندل کېږي هغه د ښځو عزت دی او بس.

خو اې خورې! تاته د زده کړې په ډګر او د ضرورت په ځایونو کې، چې له کوره وځې کوم لباس تر ټولو ډاډمن او خوندي ده؟ راځه د یوې افغانې حیادارې خور د خولې خبرې واورو چې په افغاني ټولنه کې ځان ته کوم وړ جامي خوښوي او د سکون او ډاډ احساس پکې کوي.

دا مسلمانه خور وایي: (ځینې ځوانان او غرب مېشتې مېرمنې پر افغاني دودیز لباس او حجاب نیوکې کوي، چې مېرمنې له سره تر پښو پکې مستورې وي. د غسې حجاب ځینو د ښځو لپاره سپکاوی او ځینو قفص بللی دی، زه له هغو سره له اسلامي او ټولنیز لحاظه نه غږېږمه، زه د یوې مېرمنې په توګه دوی ته د زړه حال وآیمه: زه کوم حجاب خوښوم؟

هغه حجاب چې زه د ارامۍ احساس پکې وکړم او د خلکو نظر له ځانه واړوم، زما دودیز حجاب برقه( شنه چادري) ما تل له ځناورو سترګو ژغوري. هر کله مې چې سترګې له حجابه را اېستلې دي د خلکو خبرې را پسې شوې دي، هر کله مې چې کوټې برقع ( توره حجاب) کړی ده خلکو ځارلې یمه ځکه نو ماته دا تور لباس (برقع) تر ډېره یوه فېشني جامه ده نه حجاب.

زما ښکلا زما له مخ (ځېرې) نه ځرګندېږي زه نه غواړمه چې زما ښکلا نا محرم ته ځرګنده شي زما دودیز حجاب هم اسلامي دی هم کلتوري.

په دغسې یو ټولمنلي لباس او حجاب زه د ټولنې تر نظره با عفته او سنګینه ابسمه! نو زه له داسې یو ټول منلي کلتوري ارزښته سرغړونه نه کومه، او ځوک چې زما مخ له حجابه باسي هغوی زما د ښکلا وږي دي، هسې یې اسلامي حجاب بهانه ګرځولی ده).

**اې خویندو!** د دې خور د زړه خبره مو د زړه په غوږونو واورئ ځومره ښکلې حقیقت یې ویلی دی، دا واقعیت دی چې تور حجاب هغه چې سترګې ورنه معلومېږي یا سترګې هم پکې پټې وي په رښتیا د نارینه و توجه جلبوي او یو فېشني لباس دي، نو که غواړې ځان مستوره او له وږیو سترګو خوندي وساتې نو شنه چادري له ټولو غوره، خوندي او ډاډمن لباس او حجاب دی.

**خورې!** که ته دا لباس ځان عار او قفص بولې نو بیا به خامخا د بازار په کوځو او واټونو کې ځناور صفته انسانان درته سترګې په لار وي او ستا د داړلو د موقع انتظار به کوي، ته په دې پوهېږې، چې دا بشري لیوان دي او ستا ځېرولو ته ځومره بېتابه دي، ستا په نازو او نخرو تګ او له نامحرمو ځوانانو سره ستا تلیفوني اړیکې به خامخا یوه ورځ ستا عفت در ځخه لوټ کوي، ځکه یو وږی لېوه له یوې ګډې او مېږې ځخه

پرته له پستې او نرمې غوښې څخه نور څه نه غواړي، خو دغه بشري لېوه چې ستا د داړلو په نسبت کومه اراده کړې هغه د ګډې د غوښې څخه په میلیون هاو چنده غوره دی، د هغه له لاسه ورکول ستا لپاره تر مرګ هم ډېره ناوړه ده.

ستا همدغه عفت دی چې ته پرې ژوندی یې، ته پرې ویاړې، اوته پرې د برم څښتنه یې، د دغسې لېوانو له کبله د ښځې د عفت داړل هغې ته تر دې سخت دي، چې سل ځله ومري. دوی ستا په نسبت څه تمه لري؟ قسم په الله ځینې فاسق او فاجر ځوانان به دا وایي، چې مور په یوه انجلۍ کې د اخلاقو او ادب پلټنه کوو، په مختلفو اسلوبو او نیرنګونو له هغې سره خبرې، لیدنې، کتنې تبادله کوي، د پاکۍ او رېښتونې مینې وعدې ورکوي، زه بیا هم د الله پاک په سپېڅلي نامه قسم خورم، چې دا ټول درواغ وایي غدر او خیانت کوي، دغه ټولې خبرې فقط ستا د عفت د څېرلو لپاره سریزه او مقدمه ده، که د دې ځوانانو ځانګړي مجلسونه او خلوتونه وګورې نو توبې به وباسې! هو د غه سریزه به ستا د عفت د څېرولو په لور منتج شي، هغه داسې چې د یو ساعت په اوږدو کې د خوندونو یوه توپاني څپه راشي، بیا هېره کړای شي هغه خپلې پښې سپکې کړې، خو ته په ټولنه کې سقوط وکړې هغه د کومې بلې ناخبرې پېغلې په لټه کې شي تر څو یې عفت ور څخه غلا کړي.

خو تاته پېغور متوجه شي، ټولنه د هغه هر څه معاف کړي وایې یو بدعمله ځوان و، خو اوس یې توبه وېستلې او ښه سړی شوی دی، او ستا د ژوند مراندې خو له دغه عار او پېغور سره اودې غزېدلې دي او ټولنه بیا تاته ښښه نه کوي، خو که په کوم بازار کې له دې ځوان سره مخ شوې وای، او په ټینګ عزم او هوډ سره دې اعراض او کرکه ورته کړې وای، نو هر چا به ستا مرسته کړې وای، او هېڅ کوم فاجر به د کومې ښځې د عفت په لور جرأت نه وای کړی.

ښځه که هر څومره کمال، شهرت، جاه او جلال ته ورسېږي د هغې ویاړ او نېکمرغي له واده پرته په بل څه کې نشته، چې باید یوه صالحه ښځه او پتنمه مور، او د کور یوه مهربانه پالونکې و اوسېږي، که هم هغه کومه شهزادګۍ یا ملکه وي. واده د ښځې تر ټولو ستره ارزو ده او د سپکې او بد لمنې ښځې سره هېڅوک هم واده نه کوي، حتی هغه وږي لېوه هم چې عفتونه څیروي او په خپله له څېرې عفت نه پیدا وي، ځکه هغه هم د یوې شریفې ښځې په لټه کې وي او نه غواړي چې د کور مېرمن او د اولادونو مور یې یوه بدنامه او بد لمنې ښځه وي.

**خورې!** ښښه غواړم لږ وراندې لاړم ترخې خبرې مې وکړې خو قسم په خدای د اوښکو په بدرګه یې درته لیکم، هره ورځ له رادیو ګانو اورو چې په ښاریاتو کې د نجونو د ازارونو کچه لوړه شوې، په یوه رپوټ کې مې وارېدل، چې نهه پنځوس په سلو کې نجونو ته جنسي زورونې په خپلو کاري دفترونو کې متوجه دي او نهه څلوېښت فیصده بیا له دفتر نه د باندې په لارو او کوڅو کې متوجه دي، ایا دا به د اصیلو مسلمانانو لپاره څومره دردوونکې خبر وي، چې د غزنوي او ابدالي بابا په وطن کې دې داسې حال وي، او دې ته فکر ده چې دا ګوره جنسي ـ زورونې دي نه هغه چې په خپله خوښه تر سره کېږي، څومره دردوونکې حالت ده، قسم په خدای خورې! اسلامي امت به ستا بې حجابۍ، ناز او نخرې نور هم د تباهۍ کندې ته غورځوي، که ته د غرب په اشارو ګډېدې او غربي کلتور ته دې هر کلی وایه، نو په خپلو لاسو د اسلامي امت د عزت اوحیاء مرۍ خپه کوې!.

**خورې** ایا دې ته دې پام دی، چې په لوی لاس د خپل رب، دین او ناموس د دښمنانو چوپړ کوې، ایا د دوی دا خبره دې نه ده اورېدلې، چې وایي: د شرابو پیاله او ښکلې ښځه د مسلمانانو په پرځولو کې له زرګونو توپونو غوره ده، او ته را وتلې یې نارې وهې، چې راشئ د اسلام دغه لښکر زه درته له منځه وړم.

او که بیا دا هرڅه درته تمدن ښکاري او دوکه یې نه بولې راځه هغه چې په دې تمدن کې اوج ته رسېدلي دهغوی د خولې خبرې واوره چې څه وایي، یوه الماني ښځه وایي: د غرب په وراسته تمدن باندې ونه غولېږئ! دغه هر څه دهوکه او فرېب دی؛ دوی غواړي تر همدغه سر ټکي لاندې تاسې تېر

باسي؛ او له خپل دين څخه مو په لېرې واټن کې وغورځوي!

اسلام او په اسلام کې کورنی نظم د ښځې له شخصيت سره په بشپړه توګه سمون خوري!

تاسې کولای شئ دلته دا پوښتنه مطرح کړئ چې دا ولې؟ هو! الله جل جلاله د خپل حکمت پر بنسټ سړی د ښځې په پرتله په عقلي تحمل او بدني قوت سره غښتلی پيداکړی؛ او ښځه يې په عاطفي ډول حساسه او نازکه پيداکړې، چې له سړي سره سيالۍ او انډوله نه ده.

په همدې اساس کور د ښځې لپاره اصلي تم ځای دی؛ کومه ښځه چې له خپل مېړه او اولادونو سهر بې کچه مينه ولري هغه په هېڅ صورت او قيمت خپل کور نه پرېږدي، او له بې ګانه و سره اختلاط د خپل ځان توهين او سپکاوی ګڼي.

په لويديځ کې نهه نوي فيصده ښځې له نارينه و سره د سيالۍ او مساوات غورځو پرځو دومره لالهانده کړې، چې يواځې همدومره يې کړي، چې خپل ځانونه خرڅ کړي او خپل عفت يې د پرديو نارينه و په وړاند ې ايښی؛ له دې پرته نور هېڅ هم په لاس نه دي ورغلي.

د غربي نړۍ نوې استعماري لوبه ګلوبلايزېشن يا نړيوالتوب د مسلمانې ښځې او کورنۍ لپاره بله لويه ستونزه ده، چې غواړي مسلمانه ښځه د يو بازاري توکي په څېر بې ارزښته کړي.

غربي نړۍ چې کله د اسلامي نړۍ په مقابل کې په نظامي جګړه کې ماتې وخوړ، نو د نوي استعمار تر سيوري لاندې يې سړه جګړه شروع کړه، ځکه دوی ته د مسلمانانو اتحاد او اتفاق معلوم شو، چې مسلمانان خپل ارزښتونه، ايماني کړنلارې، تاريخې کارنامې، کلتور او فرهنګ په کلکه ساتي او د سر په بيه ورنه دفاع کوي. نو د عسکري جګړې پر ځای يې د اسلامي نړۍ په مقابل کې فکري جګړې ته مخه کړه.

د فکري جګړې زياته برخه د نجونو او ځوانانو بې لارې توب، فحشاء ، د کورني ژوندختمول، او د ښځې بې حجابي ته متوجه ده، چې په هر ډول وي بايد مسلمانه ښځه بې حجابه کړي او له خپل کور څخه يې بازارونو او کار ځايونو ته را وباسي، او له نارينه و سره يې ځنګ په ځنګ ودروي، او د دوی په اصطلاح خپل حقوق تر لاسه کړي.

له دې کار څخه د غرب يواځينی هدف د مسلمانو ښځو بربنډول او اسلامي ټولنه د اخلاقي ځوړتيا په کشمکش کې ښکېلول دي، تر څو اسلامي ټولنه له اسلامي ارزښتونو سره مخه ښه وکړي.

لکه څنګه چې په اسلامي ټولنه کې يوې ښځې ته مور، خور، لور او مېرمن ويل کېږي غواړي دا رشتې ختمې کړي او هر څوک خپلسري او په خپله مخه لاړ شي، چې د غرب ډېرې ښځې د مسلمانې مېرمنې د داسې باعفته او خواره ژوند ارمان کوي.

پيــاوړې انګليسي- ليکواله ((اني رود)) وايي: دا چې زموږ لوڼې په خپلو کورونو کې کېني او د خدمتګارو په څېر دنده سر ته ورسوي، تر دې ورته ډېره غوره ده، چې کمپنيو او شرکتونو ته ورشي او هلته يې د حيا او عفت پړونی څيرې شي! کاش چې زموږ هېوادونه هم اسلامي هېوادونو ته ورته وای چېرته، چې يوې ښځې ته د مور، خور، مېرمن او لور په سترګه کتل کېږي.

غربي ښځې د غرب له چټل ژوند نه په تنګ راغلې دي،ځکه هلته ښځه د يو بازاري توکي په څېر ده، چې هېڅ ارزښت نه لري، او په غرب کې له هر څه نه همدا توکي ارزانه پيداکېږي، چې د غربي نړۍ اخلاقي انحطاط يې اوج ته رسولی دی، کورنی نظام ختم شوی او هر څوک په خپل سر دي.

دوی غواړي په مسلمانه مېرمن هم دا لوبې وکړي لکه په غرب کې، چې يوه ښځه له کوره وځي او ښار ته رسېږي، نو هلته فکر کوي چې بايد د نارينه و غوندې کار وکړي او خپل ژوند برابر کړي، مګر ګوري چې کار ځايونه ټول په نارينه و ډک دي او د دې لپاره په هېڅ شعبه کې هم ځای نشته، اوس نو بايد دغه انجلۍ څه وکړي؟

هو! دا وخت له دې سره يو څېز (دهغې ښايست او ښځې توب ) شته، چې بازار ته يې وړاندې کړي او دځان لپاره ډوډۍ پيدا کړي، ځکه دې ته د دغې ازادۍ او خپلواکۍ حق ورکول شوی ، چې ځان د نارينه و د تفريح لپاره سامان الات کړي، ښځينه

شخصیت هلته په غربي ټولنه کې یوازې همدومره قیمت لري.

په لویدیځ کې اوس دا یوه عادي خبره ګڼل کېږي، چې ښځې باید کورونه پرېږدي او د باندې ووځي، نارینه و ته ورته د هغوی برابر کار وکړي، مګر هلته چې کله خپل زور او قوت له نارینه و سره پرتله کړي نو خپل قیمت او بیه نه شي تر لاسه کولای، خو یو بدیل له ځانه سره لري هغه دا، چې خپل ښځینه جسم له یو عالم ناز، نخرو او پېښو سره د نارینه و مخ ته کېږدي او خپل بازار ښه تود وساتي.

په نوې غربي متمدنه ټولنه کې له نارینه سره د ښځې د مساوات او برابرۍ همدغه مفهوم پاتې دی.

د دغې اخلاقي ځوړتیا سېلاب د اسلامي نړۍ څنډې هم اغېزمنې کړې دي، او ځینو مسلمانو مېرمنو هم د خپل بدن ښکلا، ناز او کرشمې خلکو ته د تلویزیون او سینما پر شیشو ښودلې دي، خو هغوی څه تر لاسه کړي؟

له یوې میاشتنۍ مجلې (العربیه) سره د مرکې په ترڅ کې هاله صافي چې فلمي ستورې ده داسې وویل:

(د قاهرې په یو ډېر مشهور هوټل کې په یوه ځپانده نیم بربنډه نڅا او رقص کې ډوبه تللې وم، چې ناڅاپه د لومړي ځل لپاره همدا شعور او احساس را سره پیدا شو، چې زه یوه سپکه جوته یم چې هسې بې معنا او بې مقصده د ننداره چیانو په وړاندې اوړم را اوړم؛ شرم او خجالت مې د بدن په رګونو کې منډې ووهلې، بې له ځنډه مې صحنه پرېښوده،خپلې کوټې ته لاړم خپل پوښاک مې واغوست او په لپو-لپو مې وژړل. را وروسته شوم اودس مې وکړ او دوه رکعته لمونځ مې وکړ، چې د لومړي ځل لپاره زه په نېکمرغۍ وپوهېدم تر لمانځه وروسته ویده شوم، یو عجیبه خوب مې لیده چې: په لوی میدان کې یو جلیل القدر شیخ د لمانځه د ادا کولو تصمیم نیسي، چې په عین حال کې یې ماته هم د لمانځ بلنه راکړه! ما ورته وویل: چې په داسې نیم بربنډه حالت کې څنګه کولای شم لمونځ وکړم؟

هغه ماته بې له ځنډه یو څادر راکړاو ځان مې پکې ونغښت د دغه امام په عکس العمل زښته زیاته خوښه شوم، په دې حال کې مې د نومړي امام په اړه پوښتنه وکړه، یوې ښځې راته وویل: دا خو د خدای استازی ( محمد صلی الله علیه وسلم ) دی ، له دې سره جوخته له خوبه را ویښه شوم او د هغه نوم مې په خوله زمزمه کاوو، په شدت سره مې وژړل او پر خپل تېر برباد شوي عمر مې د پېښېمانتیا څرګندونه کوله.

د رقص او نڅا ډګر مې پرېښود او حج ته لاړم، او د هغوترو شپو په تېرېدو دا دی لوی څښتن له روڼ سباوون سره مخ کړم)

تر توبې وروسته هغې د یوې پوښتنې په ځواب کې وویل:

(هماغه هاله صافي چې تاسې په کوم شکل او نوم پېژنئ هغه له خپلې کرغېړنې ماضي سره یو ځای تر خاورو لاندې شوه، اوس زما نوم (سهیر عابدین) دی، د اولادونو یوه مور، چې له خپل مېړه سره یو ځای د اسلام تر سیوري لاندې په پټ او درنښت کې ژوند کوم)

نومړې دا اوس اوس قاهرې ته څېرمه د جیزه په ساحه کې د مسلمانانو د اولادونو د ښوونې او روزنې لپاره یوه لویه دیني مدرسه جوړه کړې.

د ګلوبلایزېشن کلتوري اړخ مسلمانه مېرمن داسې بې ارزښته او بې حیثیته کوي، لکه د غرب ښځې چې د ځوانۍ په دوران کې یې د حسن او ښکلا بازار ښه ګرم وي او د هر چا په غېږ کې لوبېږي، خو چې لږ یې د بوډاتوب خزان ووهي په مخ کې یې ګونځې را پیدا شي بیا یې د یوې لتې په شان لرې وغورځوي، او نارینه د ځان لپاره کومه بله حسینه پېغله وګوري، د دې بې لارې توب ډېر وسایل او لارې دي چې تر ټولو خطرناکه یې د ښکلا د ملکو مسابقې دي غواړو دا موضوع لږ روښانه کړو.

## د ښکلا د ملکو مسابقې

د نړیوالتوب په چاپېریال کې دمېرمنو په پټ او عزت د خپلو ګټو په خاطر تېری روان دی، د ښکلا د ملکې مسابقې د تېرې عیسوي پېړۍ په لومړیو کې رواج شوې په دې بهانه، چې دا د تمدن او پرمختګ یو ډول دی، غواړي اسلامي او عربي هېوادونو ته هم دا له کرکې ډک رواج ولېږدوي.

دا مسابقې ګڼ شمېر وګړي هڅوي تر څو په دې مسابقو کې د ګډون لپاره په لوړه بیه ټکټونه را ونیسي، او په

پایله کې د دې کار په لاره اچوونکیو ته پرېمانه پیسې په لاس ورشي، په ځانګړي ډول هغه ډالر چې د دې مسابقې په جریان کې د تبلیغاتو له لارې د عکسونو، مجلو او اخبارونو له خرڅولو تر لاسه کېږي د یادونې وړ دي، خو دا هر څه د مېرمنو د عزت او عفت د پلورلو په مقابل کې تر لاسه کېږي.

په اړوند تر شلو زیات شرکتونه کار کوي، چې په ټوله نړۍ کې د ښکلا په نوم دا مسابقې پر مخ بیایي. په دې مسابقو کې د ملکې ټاکل په دوه عمده لارو تر سره کېږي، لومړی دا چې د رایو اونظریاتو په اکثریت سره چې نندارچیان یې ګټونکې ټاکي خو دا طریقه هر وخت د ځینو نسل پالنو او تعصباتو په نتیجه کې له ناکامۍ سره مخ کېږي. او بله دا چې شرکتونه څه نوري قیمتي لارې په کار واچوي ، او هغه دا چې د مشهورو قضاوت کوونکیو یوه ډله میدان ته راولي او هغه قضاوت کوونکې بیا په بېلابېلو لارو سره یوه خوله کېږي، او هر یو د ګډون کوونکیو په اړوند نظر ورکوي، چې وروسته بیا د نظریاتو اکثریت ته کتل کېږي او د ښکلا د ملکې په نامه یوه پېغله ټاکل کېږي.

خو د ټاکلو ځینې معیارونه یې دا دي، چې د ښکلا د ملکې عمر باید د اتلس او پنځه ویشتو کالو تر منځ وي، او د ښکلا په برخه کې یې د بدن فزیکي ښکلا مهمه ده لکه قد، وزن، د ملا باریکي او جوړښت او داسې نور اندامونه ټول باید له هغه معیار سره سانتۍ په سانتۍ برابر وي، چې د ښکلا د ملکو د مسابقو د سازمان له خوا ټاکل شوي دي، او یو مخصوص لباس به اغوندي، چې (مایوه) یې بولي او په دې کې به یې له سینې رانیولې تر عورت غلیظه پورې وجود پټ وي او نوره به په ټوله مانا سره لوڅه وي. دا رنګه ځینې نور هم شته لکه د تحصیل درجه، عقل، حاضر جوابي، په ډېرو ژبو پوهېدل، ټولنیز روابط، ورزش، په ګډا او نڅا کې مهارت باید ولري.



د پورتنیو صفاتو درلودونکې پېغله به د نړۍ د ښکلا ملکه ټاکل کېږي او دا به د نړۍ د نورو ښځو لپاره یوه نمونه او قدوه وي، او ټولې ښځې به د هغې په شان لباس کوي، د هغې په څېر فکر به کوي او په ړندو سترګو به په هر څه کې د هغې تقلید کوي.

کله چې یوه پېغله د ښکلا د ملکې سیالۍ وګټي نو هغې ته د نړۍ د ښکلا تاج په سر اېښودل کېږي، او نغدې جایزې هم ورکول کېږي، او وروسته له دې باید دا د یو کال لپاره د ښکلا د ملکو د مسابقو له سازمان سره کار وکړي، او د نړۍ مختلفو هېوادونو ته سفرونه وکړي، تر څو یې نړیوال هم له ښکلا خوند واخلي، تر یو کال هوا او هوس وروسته ورته دا سازمان وایي: چې نوره څه خپل هېواد او کورته لاړه شه ته ډېره زموږ په لاسونو کې ولوېدې، او اوس د دې وخت دی، چې موږ د نړۍ کومه بله ښایسته نجلۍ د خپل تجارتي کاروان لپاره د ښکلا د ملکې په صفت انتخاب کړو، نو دې بېچارګۍ ته نور هېڅ هم په لاس نه وي ورغلي پرته له دې چې زرګونو خلکو په لاسونو کې لوبېدلې وي پت او عزت یې هر څه د ښکلا د ملکې په دوکه تر پښو لاندې شوي وي چې بالاخره په ډېرو روحي او رواني ناروغیو اخته شي لکه خفګان، عصبي ناروغۍ، ناارامي او داسې نور، چې په دې پړاو کې ډېرو د ښکلا ملکو خپلې تاندې ځوانۍ د مرګ کندو ته غورځولې دي.

د ښکلا دې مسابقو اسلامي نړۍ ته هم ټکان ورکړی ده، زموږ د عثماني برم او عظمت له نسکورېدو سره سم سیکولرانو د سلطان محمد الفاتح د وطن مسلمانه پېغله اروپا ته د ښکلا د ملکو د د مسابقې لپاره ولېږله راځئ د تاریخ دا تور باب هم وګورو چې عیسویانو د ترکیې مسلمانې لورته د نړۍ د ښکلا د ملکې د تاج په سر اېښودلو وخت کې څه وایي!.

د ۱۹۹۶ میلادي کال د نوامبر د میاشتې په پنځلسمه د احرار مجلې په یو مضمون کې راغلي چې: په کال۱۹۳۲میلادي کې د ترکیې سیکولر ورځپاڼې (جمهوریت) د ښکلا د ملکې لومړۍ سیالي اعلان کړه، او کریمان خالص نومې ترکۍ مسلمانه پېغله یې د ترکې د ښایست ملکه انتخاب کړه، په

همدې کال کريمان خالص بلجيم ته لاړه تر څو هلته د نړۍ د ښکلا په سيالۍ کې ګډون وکړي، دا سيالۍ د بلجيم د سپا (Spaa) په ښار کې په لار اچول شوې وې، څو د نړۍ په سطحه د ښکلا ملکه وټاکي، په دې سيالۍ کې د اته ويشت هېوادونو پېغلو ګډون کړی و، چې د لومړي ځل لپاره يوې مسلمانې پېغلې کريمان خالص هم پکې وه.

د مسابقې ټولو ګډون کوونکيو پېغلو خپل بدنونه د مجلس حاضرينو ته ور وښودل، په دې وخت کې د پرېکړه کوونکې ډلې مشر په بېړه پاڅېد، تر څو کريمان خالص د ښکلا د مسابقې ګټونکې اعلان کړي، د مجلس مشر د مجلس ګډون کوونکيو ته داسې وويل:

د ټولنې درنو غړيو! نن ټوله اروپا د نصرانيت د بريالیتوب جشن لمانځي، هغه اسلام چې څوارلس سوه کاله يې په نړۍ واک چلاوو، نن پای ته ورسېد، د ترکيې د ښکلا ملکه کريمان خالص هغه نجلۍ ده، چې لارو کوڅو ته نه راوتله، او د پنجرې يا کړکۍ له شا به يې خلک ليدل، او نن زموږ په وړاندې ولاړه ده او د اوسنۍ مسلمانې مېرمن نمونه ده؛ خبر اوسئ چې کريمان خالص د هغې سخت دريځې مسلمانې مېرمن لمسۍ ده، چې ځان به يې د خلکو له سترګو پټ ساته اوس زموږ په وړاندې په يوه شورت کې ولاړه ده(!) موږ بايد اعتراف وکړو چې دا پېغله زموږ د بريالیتوب تاج ده؛ او هغه د ښکلا د ملکې په صفت نړۍ ته ورپېژنو، برابره خبره ده چې دا د دې سيالۍ له ټولو ګډون کوونکيو څخه ښکلې نه ده، مګر دا زموږ لپاره مهمه نه ده، سږ کال موږ انتخاب نه کوو بلکې هغه څوک د ښکلا د ملکې په صفت ټاکو، چې په اسلام باندې د مسيحيت د برې سبب شوې ده(!).

په تېرو شپو کې يو وخت د ترکيې عثماني خلافت خليفه سلطان سليمان القانوني د فرانسې له سرحد سره چې د ترکيې د خلافت پولې له فرانسې سره لګېدلې وې تېرېده، چې د فرانسويانو ګډا او نڅايي وليده نو ډېر په غوسه شو، او فوراً يې امر وکړ، چې بايد ګډا او نڅا بنده شي، او د عثماني خلافت پولو ته نږدې يې ګډېدل او نڅا بنده کړه، هسې نه چې د ترکيې ښارونو ته سرايت وکړي او په مسلمانانواغېزه و کړي.

اوس د همغه عثماني خلافت د مسلمان پادشا سلطان سليمان القانوني لمسۍ ستاسو په مخ کې ولاړه ده، او ما سوا له يوه شورت نه يې پر بدن نوره هيڅ جامه نشته(!) او له موږ غواړي چې هغې ته وګورو او د هغې بدن خوښ کړو، موږ هغه خوښه کړه او هغې خپل ځان موږ ته وسپاره او نن موږ د ترکيې د ښکلا ملکه د نړۍ د ښکلا ملکه ټاکو، په دې امېد چې د ټولو مسلمانو پېغلو راتلونکې زموږ په اراده حرکت وکړي او زموږ په لاس کې وي، نو د شرابو جامونه د اروپا د بريالیتوب په احترام پورته کړئ.

که فکر وکړو چې اروپا او عيسويت له عثماني خلافت نه څومره کرکه درلوده، او په عامه توګه اسلام ته څومره د نفرت او دښمنۍ په سترګه ګوري دا يو مثال هم کافي دی.

دا زموږ د معاصر تاريخ د يوه زړه بوږنوونکي باب انځور و، مسلمانې خويندو اوس څه کوئ ايا غواړئ خپل درانده پړوني له سره وغورځوئ؟ او د کفارو له داسې شرمونکو پېغورونو سره مخ شئ؟ قسم په خدای سخت د درد او افسوس ځای دی؛ چې زموږ مسلمانې خويندې، د زينب او عايشې لوڼې نن خپله حياء، ارزښت او قيمت د دنيوي متاع په مقابل کې ليلاموي.

ګلوبلايزېشن چې نن د نړۍ ښځو ته د ښکلا د ملکو په نامه دوکې ورکوي او ستر پانګوال د دوی د ابرو او عزت د خرڅلاو په مقابل کې خپل جيبونه ډکوي، ډېر ژر به دا کرغېړنه لوبه ورته څرګنده شي او په ځان به لعنت ووايي، خو وخت به ورنه تېر وي راځئ د څو غربي ښځو خبرې واورو، چې له داسې سرنوشت سره مخ شوې دي هغوی څه وايي؟:

د امريکا د سينما مشهوره ممثله مارلين مونرو وايي: ما کورني ژوند ته ترجيح ورکوله او هغه مې د هرې ښځې لپاره انسانيت او سعادت ګاڼه، خو دې خلکو پر ما ظلم وکړ، ما ته يې د ښکلا د ملکې په نوم دوکه راکړه، زه يې سينما ته را کش کړم او سينما يوازې دا چې زما قيمت يې را ټيټ کړ، بلکې زه يې له انسانيت څخه و وېستلم، هر ښځه چې همداسې وکړي لکه ما چې وکړه نو همداسې به سپکه شي لکه زه، چې سپکه شو.

# د ننګرهار د جهادي افقه

## يو بل ځلانده ستوري پرېوت

رشيد حبيب زی

د دينی علومو نوميالی عالم د زرګونو طالبانو استاذ مشهور جهادی شخصيت استاذ العلماء والمجاهدين قاری سيد مراد زاهدی تقبله الله د اسلام او هېواد ابدی دښمنانو لخوا د روژې مبارکی مياشتی په درويشتم <۲۳> مازديګر هغه مهال په شهادت ورسيد چې جومات ځخه کور ته پر لاره وه روح دی ښاد او ياد دی تل وی

قاری سيد مراد زاهدی د مرحوم لالا جان زوئ له نن ځخه ۴۸ کاله دمخه د ننګرهار ولايت په چپرهار ولسوالئ شعيب کلي کې دنيا ته سترګی وغړولی د قران شريف حفظ او لومړنی زده کړی يې د خپل کور ځخه پيل او د کلی په جامع جومات کې بشپړی کړلی چې کله د روسی ښکيلاک ظلم او وحشت په ګران هېواد کې توره شپه جوړه کړه او دافغانانو اسلامی ژوند يې له ګواښ سره مخ کړ نو د اسلامی روحيی ژوندئ ساتلو په منظور د نورو کلی والو په څير د قاری صاحب مرحوم کورنئ هم ګاونډی هېواد پاکستان ته هجرت وکړ .

له وړوکوالی ځخه د مرحوم قاری صيب عادات و اطوارو دا جوتوله چې ښاغلی به د راتلونکی يو نامتو علمی او جهادی ځيره جوړېږی هماغه وه چې د هجرت په ديار کې يې د ښېلا ښېلو مدرسو ځخه لوړی زده کړی وکړی چې با لاخره يې د ستر عالم شيخ القران والحديث مولانا حسن جان شهيد ځخه د حديثولويه دوره بشپړه کړه او په ډير کم وخت کې د علمی نړئ د لمر په څير وځليد.

دا نو هغه ورځي شپی وي چې سرو لښکرو د ګران هېواد کاني او بوټي د مظلومو افغانانو په وينو سره کړی وه روسانو د هټلر په قدم پل ايښي وه او د بي وزله افغانانو د اجسادو ځخه يې ديوالونه جوړول په دغسي. وحشي. حالاتو کې قاري صيب مرحوم ته خپل اسلامي او افغاني غيرت په کور د ناستي اجازه ورنه کړه هماغه وه چې د خپل بابا توره يې وتړله او د ظلم خلاف يې د مرحوم مولوي محمد يونس خالص بابا تر قيادت لاندي په عملي جهاد لاس پوري کړ او تر هغي ورځي په دي ډګر پاتي شو چې د طالبانو اسلامي تحريک ظهور وکه او په هيواد کې يې سپين اسلامي شريعت نافذ که .

سپين اسلامي شريعت ، امن و امان ، ظلم له منځه وړل او هيواد والو د جان او مال خوندي کيدل د افغانانو ستر ارمان وه چې اسلامي امارت په داسي احسنه او کامله معنی پوره کړ چې تاريخ کې يې ساري نه ليدل کيږي دا چې اسلامي امارت د غم ځپلو افغانانو د هيلو ترجمان شو نو قاري صيب مرحوم هم اسلام او هېواد ته د خدمت په تکل ورسره مل او د ځلورمي حوزی د مسؤل په حيث يې د اسلامي امارت تر قيامه خپل ملي اواسلامي مسؤليت اداء کړ

د ۹ ستمبر ځخه پس چې کله وحشي. امريکايانو په ګران هېواد يرغل راوړ اسلامي امارت يې ړنګ که او د هېواد هر هغه وګړي يې د زندان تورو تمبو شاته واچو چې د طالب او ملا نوم يې لاره په همدی سلسله کې يې د قاري صيب مرحوم په کور هم چاپه واچوله او ځان سره يې د باګرام وحشي. او کرغيړن زندان ته انتقال که پس له يو کال اسارته چې الله آزادي ورکړه نو ده هم باقي پاتي ژوند د الله لاري ته وقف که ښېلا بيلو مدرسو کې يې د درس تدريس ترځنګ د احياءالعلوم جامعي د بنسټ ډبره کيښوده همدلته يې د وړې دوری کتابونه تدريس او هم مهاله يې يو وار بيا د اسلامي امارت تر روښانه چتر لاندي په جهادي مبارزه لاس پوري که .

دا چې قاري صيب د لوړ استعداد او بی شميره کمالاتو مالک وه پخه تجربه او روښانه سابقه يې لرله همدا لامل شو چې د اسلامی امارت له لوری د ننګرهار ولايت د نظامي کميسيون غړي او د اسخباراتو معاون وټاکل شو چې د ژوند تر اخرې ورځی په همدی علمي او جهادي منصب پاتی شو او بيشميره شاګردان يې د صدقه جاريه په حيث پريښودل . (روح دي ښاد او ياد دي تل وي)

# سي آی ای،

## په افغانستان کې خپل لګښتونه د نیشیي توکو له قاچاق پوره کوي.

ګلوبل ریسرچ په خپله یوه نوې څېړنه کې د امریکا د سرمفتش جان سوپکو له خولې ویلي دي، چې افغانستان کې شاوخوا پر پنځه سوه زره جریبه ځمکه کوکنار کرل کېږي. سرچینه زیاتوي، چې په دومره پراخه پیمانه کوکنار سي ایې ای ته دا فرصت ورکوي، چې له کوکنارو د ترلاسه کېدونکې عایده خپل پټ عملیات پر مخ یوسي. سرچینې لیکلي: «دا د هیرویینو د تولید یوه ستره ساحه ده، کومه چې سي ایې ای ته د نشه‌یي توکو له لارې د ترلاسه کېدونکو پیسو پر مټ د خپلو پټو عملیاتو د پر مخ وړلو فرصت ورکوي». ګلوبل ریسرچ افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو شتون د نشه‌یي توکو له کر سره تړلی بولي او وایي، تر څو چې دغه ځواکونه هلته وي، د نشه یي توکو کر به له منځه ولاړ نه شي. څېړنې ادعا کړې، چې اروپا او نورو هېوادونو ته نشه‌یي توکو د الوتکو او بېړیو له لارې لېږدول کېږي، چې معلومه خبره ده، چې هغه د وسله والو طالبانو په لاس کې نه دي. په دغو الوتکو او بېړیو کې له افغانستانه د نړۍ هېوادونو ته د قاچاق کېدونکیو نشه‌یي توکو اندازه نوي سلنه ښودل شوې ده، چې د امریکا تر واک لاندې دي. څه موده مخکې ولسمشر غني هم د برتانیې پلازمېنه کې فساد سره د مبارزې نړیواله غونډه کې څرګنده کړه، چې د افغانستان اتیا سلنه نشه‌یي توکي اروپا ته ځي. هغه ویلي و: «د ملګرو ملتونو له لوري د ورکړل شویو معلوماتو له مخې په تېرو لسو کلونو کې له نشه‌یي توکو د ترلاسه شویو پنځه سوه ملیارد ډالرو څلور سوه اتیا ملیارد یې د اروپا دننه ترلاسه شوي دي، خو د دې پر ضد هیڅ قانوني ګام نه دی اخیستل شوی». د افغانستان کورنیو چارو وزارت هم یوه اوونۍ وړاندې خبر ورکړ، چې د کوکنارو د کر پر ضد مبارزه تکنۍ شوې ده. د دې وزارت له نشه‌یي توکو سره د مبارزې مرستیال باز محمد احمدي کابل کې یوې غونډې ته ویل، چې سږ کال د کوکنارو د کر مخه نه ده نیول شوې. د هغه په وینا د هېواد جنوب لویدیځ، ختیځ او شمال ختیځو سیمو کې پر نوي سلنه ځمکه کوکنار کرل شوي دی. دا په داسې حال کې ده، چې امریکا پر افغانستان د برید د جواز لپاره یو لامل افغانستان کې د کوکنار پراخه کر ښودلی و او د له منځه وړو ژمنه یې کړې وه، خو راپورونو ښوده، چې افغانستان کې له هغې ورځې راپه دې خوا ورځ له بلې د کوکنارو کر زور اخیستی دی.

# افغان کډوال:
# د پاکستان او افغانستان شریکې ګټې!

لیکنه: شبیر احمد عثماني

ماته را یاد دي چې کله په افغانستان کې په ۱۳۵۷ هـ ش کال د ثور په اوومه نیټه افغاني کمونستانو (خلقیانو+ پرچمیانو) د سردار محمد داود په جمهوري حکومت کودتا وکړه او دوی ورته د خلقو د انقلاب نوم ورکړ په هیواد کې د بې ځایه بې محکمو قتلونو د دیني علماؤ ، متدینو پوځي افسرانو او قومي مشرانو بې دریغه اختطاف او وژنو لړۍ پیل شوه افغانان مجبور شول چې له هیواده هجرت وکړي، پاکستان او ایران ته د کډوالو بهیر پیل شو خو پاکستان او ایران دواړو نه غوښتل چې افغان مهاجر پخپل هیواد کې وزغمي ځکه چې دا یې پخپل اقتصاد یو درونډ پیټی باله او ددې سره - سره یې د ګنوامنیتي ستونزو اندیښنې هم انګیرلې.

هغه وخت په کوزه پختونخوا کې د پاکستان مذهبي سیاسي ګوند جمعیت العلماء اسلام فدرالي حکومت منتخب شوی و او اعلی وزیر یې مفتي محمود و چې اوس یې مولانا فضل الرحمن جانشین دی.

مفتي محمود چې آره د افغانستان د غزني ولایت څخه و خو لا ډیر وړاندې په پاکستان میشت شویدی - د پاکستان مرکزي حکومت ته یدې الفاظو وویل: افغانان مسلمانان او زمونږ ورونه دي دا چې نن پر دوی سخته راغلې باید مونږ پخپله غیره کې ځای ورکړو- د انګریزانو په لاس راکښل شوي کرښې مونږ هیڅکله هم نشي سره بیلولی، داسلام او پښتونولۍ په اساس دا د افغانانو پر مونږ حق دی.

په ایران کې هم د خمیني په مشرۍ په اصطلاح یو اسلامي انقلاب راغی هغوی چې له امریکا نوي آزادي ترلاسه کړي وه خو د کمونستي ایدیالوژي او د وخت شوروي اتحاد څخه یې درنه اندیښنه درلوده. نو مجبورا یې افغان مهاجرینو ته خپله غیره خلاصه کړه، اتفاقا د شوري اتحاد او امریکا ، نیټو او سینټو ترمنځ سړه جګړه خپل اوج ته رسیدلې وه دا بحث اوږدیږي نو ځکه دلته پردې نورې خبرې نه کوو.

راځو دیته چې افغانانو ته د ملګرو ملتونو تر څنګ امریکا او متحدینو یې د مرستې ورکولو لاس وراوږد کړ او د پاکستان او ایران له لارې یې د نقدي مرستو ترڅنګ افغان مهاجرینو ته طبي ، خوراکي او پوځي توکي ورکول پیل کړل.

په ډیر لنډ زماني واټن کې پنځه ملیونه افغانان پاکستان یو لک شاوخوا امریکا او اروپا او درې ملیونه ایران ته مهاجر شول.

دافغان کډوالو سره له دې مرستو نه ایران او پاکستان دواړو په عظمي ډول ګټه پورته کړه - هم یې خپلې پوځي اداري مضبوطې کړې او هم ملکې. د مرستو ډیره برخه یې په یو او بل نوم د ځان پرخوا ورماته کړه. چې دادی نن یې وینو پاکستان او ایران دواړه په هستوي قدرتونو بدل شول خو سرونه کورونه او هیواد دافغانانو تباه او برباد شو. مګر ستر پراختیا غوښتونکی یرغلګر قدرت (شوروي اتحاد) یې رانسکور کړ.

د څوارلس کلن بریمن جهاد او مقاومت وروسته غوځ اکثریت افغان مهاجر علاقمند و چې خپل هیواد ته ستانه شي او د خپل هیواد په بیا رغونه کې مهم رول ولوبوي، یو شمیر یې هیواد ته ستانه شول مګر د خپل منځي جنګونو او ملوک الطوائفي له امله دا بهیر پڅ شو، په ۱۹۹۴

کلونو کې چې طالبان واکمن شول یو شمیر مهاجرین بیا هیواد ته ستانه شو خو د دې سره یو زیات شمیر هغه هیوادوال چې د کمونستانو په حکومتونو یې دندې اجراء کړې وې په عیاشیو روږدي او د طالبانو سره عقیدتاً جوړ نه و هم له هیواده ووتل نو بیا هم د مهاجرینو په ستنیدو کې کوم پرمختګ ونشو ګټه او تاوان سر په سرشو.

خو کله چې امریکایانو پر افغانستان پوځي یرغل وکړو- امریکا او نورو اروپایي هیوادونو سلګونه زر ګونه ملیونه ډالره مرستې اعلان کړې نو ډیری مهاجرینو دا فکر کاوه چې دادی په هیواد کې مو اقتصادي غوا لنګه شوه د یونسیار په مرسته دوه ملیونه افغانان د پاکستان، اروپا ، ایران او امریکا څخه بیرته هیواد ته ستانه شول. خو ډیر وخت نه و تیر شوی چې د مهاجرینو ګمانونه په سراب بدل شول په هیواد کې د نه د دوی لپاره هیڅ کوم خاص پروګرام جوړ او پلی نشو، په ټولو ولایاتو کې له سختو ستونزو سره لاس او ګریوان شول . هیواد ته د کډه شویو هیوادوالو په لیدو په پاکستان او ایران کې میشتومهاجرینو پښه ونیوه او په ایران او پاکستان کې یې خپل ژوند غوره وباله.

ایراني حکومت د مهاجرینو کمپونه وتړل او یا یې تر سختو قیوداتو




لاندې راوستل انتهایي زشت چلند یې ورسره وکړ خو بیا هم مهاجرین په ایران کې شته.

پاکستان هم د مهاجرینو ستر کمپونه لکه عیسی خیل ، کچه ګړۍ ، ضاخیل، مانسهره ، هریپور او کویټې پر خوا...... ټول وتړل او مهاجرین مجبور شول چې سترو ښارونو او یا قبائلي سیمو ته کډه شي.

په اوسني وخت کې په پاکستان کې درې ملیونه افغانان ژوند کوي چې شپاړس لکه یې قانوني اسناد لري خو څوارلس لکه افغانان بې له قانوني اسنادو پرته په پاکستان کې ژوند کوي. پاکستاني پولیس هره ورځ پدې پلمه چې ګویا قانوني اسناد نلري افغانان نیسي، پیسې ترینه اخلي، زندانونو ته یې وړي او بیا یې په ډیورین کرښه اړوي خو لا پولیس خپلو ځایونو ته نه وي رسیدلي چې افغانان بیرته خپلو کورونو ته ځانونه ورسوي. ځکه دوی په پاکستان کې د کاروبار لپاره زمینه سازي کړې او په پاکستان کې له افغانستانه ورته ژوند آسان او ښیرازه دی.

اوس خبره داده چې ولې پاکستان د کډوالو افغانانو په بیرته تلو ډیر اسرار نکوي ګټه یې څه ده ؟ او که کوم وخت دافغان کډوالو د بیرته تلو خبره کوي کوم اهداف لري؟!

یوه وجه خو یې داده چې په افغانستان کې حالات دومره خراب دي چې نه خو افغان حکومت دا غواړي چې پداسې وخت کې خپل افغان کډوال هیواد ته راوغواړي ، سنبالښت یې نشي کولی او نه هم پاکستان د دې کډوالو څخه د سیاسي ګټې له اخیستو ډډه کوي ډیر ځله یې پر افغان حکومت د سیاسي فشار د آلې په توګه کاروي. بله مهمه خبره ده چې د پاکستان پر اقتصاد د افغانانو ژور اغیز پروت دی.

د بیلګې په توګه : اول – په پاکستان کې نه ویشت په سلو کې ۱۰۰٪۲۹ سرمایه د افغان کډوالو ده – که افغان کډوال دا سرمایه له پاکستانه خپل هیواد ته نقل کړي په پاکستان کې یو داسې اقتصادي بحران رامنځته کیدای شي چې پاکستان به یې تشه زر ډکه نکړای شي او له سختو ستونزو سره به مخامخ شي.

دویم - که په اوسط ډول یوه کورنۍ لس تنه غړي ولري نو درې لکه کورنۍ کیږي – له دې درې لکه کورنیو څخه چې غوڅ اکثریت یې د پاکستانیانو په کورونو کې په کرایه ژوند کوي له پنځه زره نیولي تر پنځوسوزرو روپیو پورې کرایه ورکوي خو که زیات یې د کمو کرایه ورکوونکو

څخه وشمیرو او د هر کور کرایه په میاشت کې لس زره پاکستانۍ روپۍ اټکل کړو نوپه میاشت کې دیرش زره لکه روپۍ د افغان کډوالو له جیب نه د پاکستانیانو جیبونو ته ځي. همدغه راز که د یوې کورنۍ د ګیس او بجلۍ میاشتینۍ بِل کم ازکم ۲۰۰۰ دوزره روپۍ اټکل کړو نو هره میاشت شپږزره لکه روپۍ د پاکستان بودیجې ته د افغان کډوالو لخوا درومي. دا چې د افغانانو له سرمایې څخه په میاشت کې څومره محصول پاکستاني ګمرکاتو ته ځي زه خپله نه پوهیږم خو فکر کوم چې د پورتني حساب دوه یا درې برابره به وي. دا چې څومره پاکستاني ډاکتران او شفاخانې، ټراسپورټ او نور... له افغان کډوالو څخه ګټه ترلاسه کوي دا یې نو خپله وارزوئ.

خو له دې ټولو پرته ویلی شوچې پاکستاني حکومت او خلکو ته هره میاشت په اوسط ډول پنځوس زره لکه روپۍ د افغان کډوالو لخوا ګټه رسیږي.

اوس راځو دې ته چې د دومره لوی شمیر هیوادوالو لپاره ولې پلان ګذاري نه کیږي آیا دا کوم ګران کار دی؟

زما په خیال هیڅ کوم ګران کار ندی، که د هیواد په بیلو بیلو ولایتونو کې دښتې تر نظر لاندې تیرې کړو افغانستان دومره دښتې لري چې د دې لس برابره زیات خلک ځایولی شي او ستر اقتصادي پلانونه پکې تطبیق کیدلی شي. چې پدې صورت کې به هیڅ افغان کډوال کوم شکایت ونلري.

د افغانستان اوسني خزانه اووه ملیارده ډالره ده، که یو ملیارد ډالر یې د کډوالو لپاره یواځې د کورونو پر جوړولو مصرف شي نو هر افغان کډوال به د یو پنځه بسوې پاخه کور او لس جریبه ځمکې مالک شي او یو ملیارد ډالر ورته په شفاخانو مکتبونو، ښارګوټو او د اوبو په سیستم مصرف شي نو له یو کال وروسته به د خوراکي ، طبي او نورو لارو څخه له څلورو ملیاردو ډالرو څخه زیات مالیات د حکومت بودیجې ته تللی شي پداسې حال کې به نه د کارونو بیدرکي وجود ولري او نه اقتصادي بحران، دې کې شک نشته چې پدې کار کې به پاکستان هم ډیره ګټه وکړي ځکه چې د بل هر ګاونډي څخه به د پاکستان څخه د موادو انتقال هم آسان او هم ارزان تمام شي او پاکستاني زرګونه فابریکې چې اوس ځای پرځای ولاړې دي په افغانستان کې ښه مارکیټ ولري او پاکستاني حکومت ته به د دغو فابریکو د موادو څخه دومره ګمرکي عوائد ترلاسه کړي چې د افغان کدوالو د سرمایې د انتقال ټوله تشه ډکولی شي.

پدې کار سره به د افغانستان او پاکستان دواړو هیوادونو لپاره ډیره ګټه وي. دواړه هیوادونه نور هم داسې اقتصادي پلانونه پکار اچولی شي چې دواړه هیوادونه به پکې آباد او شیرازه وي. خو پدې موجوده مفسدو چارواکو به دا ستر او مهم کار ترسره کول شونی نه وي بلکې د طالب چارواکو په شان پاک نفسه، قاطع، با احساسه او وطن دوسته خلک ورته پکار دي.

دا چې ما د هیواد د دوه ملیارد ډالره هیوادنۍ بودیجه په لګښت کې وشمیرله نړیوال مرستندویه هیوادونه او خصوصي سکتورونه کولی شي دا لګښت د مرستې او پانګې اچونې له لارې له افغانستان سره ترسره کړي.

چې هغه وخت به د افغانستان ملي بودیجه هیڅ زیان ونهویني بلکې اضافي ګټه به ترلاسه کړي.

دا چې پاکستان زمونږ ګاونډي هیواد دی نه مونږ کولی شو له دوی څخه افغانستان پر بله خوا یوسو او ترې لرې شو او نه هم پاکستان کولی شي خپل هیواد زمونږ څخه بل چیرته یوسي - پکار ده ښه دوستانه ګاونډیتوب ولرو.

ځکه زمونږ او ددوی ترمنځ دومره مشترکات شته چې هغه مونږ د نورو ګاونډیانو سره نلرو. او که یو تربل د دښمنۍ مزي سره کش کړو لکه اوس چې د دښمنانو لخوا پلان شوي او د دښمنۍ اور ته یې په پټه او ښکاره لمن وهل کیږي تر ټولو مونږ ډیر زیانمن کیږو. نو باید د ښه ګاونډیتوب لپاره غوره ډیپلوماتیک ګامونه پورته کړو، که مونږ لږ پخپل ګریوان کې وګورو او غوره ډیپلوماسي ولرو پاکستان زمونږ ښه دوست کیدلی شي.



# نیپال هم

## له افغانستانه پښې سپکې کړي



قاري حبيب

د ۱۳۹۵ لمریز کال د جواز په ۳۱ مه د دوشنبې ورځ وه چې د کابل ښار د نهمې حوزې د بنايي په سيمه کې د اسلامي امارت يوه سرتيري مجاهد د بهرنيو وسلوالو په ډک موټر فدايي بريد ترسره کړ.

شيبه وروسته رسنيو ومنله چې بريد د نيپال هيواد په هغو کرايي ټوپکوالو شوی دی چې په افغانستان کې يې له يوې غربي امنيتي کمپنۍ سره د ساتونکو په حيث قرارداد درلود او همدا اوس يې د کاناډا هيواد د سفارت د امنيت ساتلو دنده پر غاړه وه. دغه نيپالي کرايي جګړه ماران چې کله د رخصتۍ تيرولو لپاره د خپل هيواد په خوا تلل هوايي ډګر ته نارسيده د مجاهدينو لخوا وربانديې فدايي بريد وشو چې په نتيجه کې يې ۱۴ نيپال ټوپکمار ځای په ځای ووژل شول او پنځه تنه نور ټپيان شول. نيپالي رسنيو دوه ورځې وروسته خبر ورکړ چې د ټپيانو له جملې هم يو تن مړ شوی چې په دې ډول د بريد په پايله کې د نيپالي عسکرو د مقتولينو شمير ۱۵ تنو ته ورسيد.

### نيپالي ټوپکوال په افغانستان کې

نيپال د هند او چين تر منځ په سخته جغرافيه کې محصور يو کوچنی هيواد دی چې د نړۍ د فقيرترينو هيوادونو په زمره کې حسابيږي.ددې هيواد اکثريت خلک هندو او د بودايي دين پيروان دي.د نيپالي ټوپکوالو شتون په افغانستان کې داسې نه دی لکه د امريکا او نورو غربي اشغالګرو. دا هيواد چې خپله ډير وخت د نورو تر استعمار لاندې پاته شوی . نظامي پرستيژ يې دومره غښتلی نه دی چې د نورو هيوادونو د اشغال خوب وويني. خو دا چې په دې هيواد کې د فقر او بيکارۍ کچه خورا لوړه ده. له همدې امله يې ګڼ اتباع خصوصا متقاعد شوي يا له دندو شړل شوي پوځيان د نورو هيوادونو په امنيتي ليکو او سيکورټي کمپنيو کې د اجيرو ټوپکمارو په حيث دندې اجراء کوي.

بلک واټر د امريکا هغه ځانګړي او بې جلبه عسکري ځواک دی چې د امنيتي کمپنۍ تر نوم لاندې فعاليت لري، ددې ځواک تر شا سي آی اې او د امريکا د جمهوري غوښتونکي ګوند څو مليونران ولاړ دي او تأسيسي فلسفه يې دا ده کله چې امريکايي پوځ په اخلاقي لحاظ نشي-کولای په کومه نامشروعه جګړو او عملياتو کې شرکت وکړي نو بيا ددغه شرکت وسلوال چې هيڅ قانون او اخلاقي اصل ته مسؤل نه دي استخداميږي تر څو د امريکا د ګټو لپاره وجنګيږي.

غربي ژورناليست جيرمي سکاهل چې د بلک واټر په اړه يې کتاب ليکلی وايي: چې په دې کمپنۍ کې د فلپين، نيپال،چيلي، کولمبيا، السلوادور، هندوراس، پانامه، چيلي او يوشمير افريقايي فقيرو هيوادونو څخه بدماش فطرته ټوپکوال استخداميږي او بيا په ځانګړو ظالمانه عملياتو کې تري کار اخيستل کيږي.

په افغانستان کې د نيپالي وسلوالو شتون هم د بلک واټر او دې ته ورته نورو شخصي امنيتي کمپنيو په چوکاټ کې و، چې د غربي فرمان ورکوونکو په امر يې ددې هيواد د وګړو په خلاف خورا ظالمانه عمليات سرته رسول.

د بلک واټر په چوکاټ کې دځانګړو جګړه ايزو عملياتو تر څنګ نيپالي ټوپکمار په ډيرو هغو امنيتي ګروپونو کې هم شامل و چې د بهرنيو سفارتونو، دفاترو، مؤسساتو اود سفر په مهال د بهرنيو ديپلوماتانو د ساتنې دنده يې درلوده. د نيپال حکومت د رسمي شميرو له مخې په افغانستان کې په دنده بوختو ددې نيپالي ټوپکمارو شمير تر

دری زرو پورې رسیږي. خو غیر رسمي شمیرې ښیي چې ډیری نیپالیان په پټو لارو تر افغانستانه رسیدلي چې د ټولو شمیر حتی تر اتو زرو هم زیات دی.

په افغانستان کې له دې وړاندې هم په بیلابیلو سیمو کې نیپالي ټوپکوالو ته مرګ ژوبله اوښتې، څه موده وړاندې د هیواد په شمال مزار شریف او د کابل په وزیراکبرخان کې په بهرنیو دفاترو د بریدونو په پیښو کې هم ګڼ نیپالي امنیتي ګارډان مړه او ټپیان شوي وو. خو پخوانیو بریدونو په نیپالي ټوپکوالو او د هغوی په متبوع حکومت دومره اغیز نه و کړی لکه دې اوسني تازه برید چې وربانديې اثر پرېښود.

## د تیښتې نغاره

په نیپالیانو له وروستي برید څلور ورځې وروسته د سرطان په څلورمه د نیپال حکومت اعلان وکړ چې هم به له افغانستانه خپل ټول هغه وسلوال وباسي چې د غربي دفاترو امنیت ساتي او هم یي د رسمی فرمان له مخې په افغانستان کې د نیپالي وګړو په هر ډول کار او اوسیدنه بندیز ولګاوو.

د نیپال د کارموندنې وزیر ګواندا مانې بهورتل په دې ورځ اعلان کړه چې ټول نیپالي وګړي دې له افغانستانه ووځي ځکه په دې هیواد کې ددوی ژوند ته خطر متوجه دی.

که څه هم د نیپال یو شمیر سیاسي اشخاصو او د کار موندنې اتحادیو دحکومت په دې پریکړه نیوکه وکړه، خو حکومت په خپل دریځ کې مصمم دی چې له مخې به یي له افغانستان څخه هغه نیپالي مستأجر ټوپکوال پښې سپکوي چې په تیرو څوارلسو کلونو کې یي دلته د خپل سر په بیه د غربي ملکي او پوځي افرادو او تاسیساتو امنیت ساتلی.

د زرګونو نیپالي کرایه وسلوالو تیښته بې له شکه د افغانستان د جهاد لپاره یوه لویه لاسته راوړنه ده. په دې سره که له یوې د ځانګړو امنیتي کمپنیو څواک او روحیه کمزوري کیږي له بلې د اشغالګرو هغه دفاتر چې پخوا یي امنیت دغو کرایي ټوپکوالو ساته په بشپړ ډول اسیب پذیر او د مجاهدینو بریدونو ته اماده کیږي چې په پایله کې به یي دغربي اشغالګرو تلفات نور هم زیات شي.

## د سلفو ترمنځ دعوه

سلم بن قتیبة رحمه الله وایي: زه یو ځای ناست وم بشیر بن عبد الله رحمه الله راباندې راغی راته کړه یې:

دلته ولې ناست یې؟ ما ورته وویل: زما د اکا زوی دی له هغه سره مې دعوه ده، هغه زما د کور خواته په یوه شي دعوه کړې ده، بشیر رحمه الله راته وویل: ستا پلار له ما سره ښېګڼې کړي وې، زه غواړم د هغو بدل درکړم، او هغه داسې چې زما نصیحت واوره: په والله دعوه او جنجال د سړي دین ته ترټولو زیات تاوان رسوي، د سړي غیرت او میړانه ختموي، د ژوند خوند خرابوي، او د سړي زړه او ذهن مصروف او بوخت ګرځوي. سلم وایي: زه ولاړ شوم او روانیدم د اکا زوی مې راته وویل: څه کړې؟ ما ورته وویل: زه له دعوې تېر شوم، هغه راته وویل: پوه شوې چې زه په حقه یم، ما ورته وویل: نه، له هغه شي زه درتیریږم، خو زه په دعوه ځان نه بدرنګه کوم، هغه راته وویل : زه هم هغه شی نه کوم هغه یې ستا. [موسوعة ابن أبي الدنیا 4 / 325]. دا د سلفو علماو رحمهم الله ترمنځ د دعوې یوه بیلګه ده، راځئ موږ د موجوده زمانې خلک لېږ ځانونو ته متوجه شو چې پخپلو کې له یوه بل سره د دعوې په مهال څه سره کوو؟

# دافغان دولت !!

# نــوی پـرمـخـتـګ

خالق یار احمدزی

نړیوالې ټولنې له افغانستان سره تر ۲۰۲۰ کال پورې د پوځي مرستو هوکړه وکړه. را ځئ دا خبر لږ واضح کړو! له کله چې افغان دولت د بهرنیانو په اوګو سپور هیواد ته راغلی، نړیوال اشربانې ورسره په هر لحاظ متحد دي او د نړیوالو تر سیطرې لاندې هره پروژه او هره دیپلوماسي پر مخ بیول کیږې نو د داسې غونډو شالید او لیدلوری کومه متوقعه لاسته راوړنه ځکه نلري. چې نړیوالو دوه کاله تر مخه د توکیو په کنفرانس کې له افغان دولت سره څو ملیاردیزه مرسته اعلان کړه مرسته د امریکا په خوښه په مختلفو کټګوریو کې افغان لوري ته ورکړل شوه چې بې بندوباره ډالرو حکومت او مخالف اپوزیسیون سره وویشل او حتا تر دې چې دیو بل پرضد یې حربه وکاروله. او امریکایانو لا هم هغه مرسته پوره نده رسولې چې په بیلا بیلو سرمشریزو کې دهغې د سوارې یادونه کوي آخوا بیا اوباما ۲۰۱۴ د لیږد ورورستی پړاؤ تاکلی ؤ. لویدیځو مطبوعاتو د نړیوالو ماتې داسې انځوروله( امریکا او متحدینو یې په مادي، او معنوي لحاظ کلکه ماتې وخوړه خو ښایي دخپلو ګټو د تحفظ پخاطر څو نور کلونه هم پاته شي) دوی د جلا دیپلوماسی په لحاظ افغان عسکر خپل محافظین وګرځول او ګرم سنګرونه یی یواځې له طیارو بدرګه کول چې کله نا کله به یې خپل افغان متحدین هم په نښه کړل.

تیره ورځ افغان نیم واکي ولسمشر د وارسا په نامه غونډه کې له نړیوالو د کومک غوښتنه وکړه. هغوی هم د هوکړې سر په ښورولو سره د توکیو دپاتشنیو، او د توافق سره سم د پاته کیدونکي فوځیانو احسان پرې وربار کړ دلته څو مهم ټکو ته اشاره کوو:

۱- داچې اشرف غني د دې په ځای چې په امریکایانو غوڅنده اعتراض وکا او د اراضي تمامیت پوښتنه ترې وکړي. چې دوی یې د پاکستان سره په جګړییزه مشاجره یواځې پریښودل، او د تړون تر مخه به امریکایان د هر بهرني اشغال پرضد افغان ملګرو شاته دریږي. دواړو ولسمشرانو سربیره په هغه هغوی ته دعجز انحنا ورته وکړه او دهغوی له قربانیو مننه وی شول.

۲- داچې امریکایان به دشوي تړون تر مخه د خپلو ګټو د تحفظ په خاطر پاته کیږي نو څنګه افغان مشرانو د دوی دا وړاندیز په ولولو وستایه او ترې یې په چکچکو هرکلی وکړ؟!

۳- نړیوالې ټولنې له افغانستان سره د څو میلیارده دالر ژمنه کړې وه چې لا هم په قسطونو پوره کیږي. ولې افغان دولت له هرې ژمنې تو د هر کلی کوي آیا له خپل قرض خبر ندی که دې کې هم دیپلوماسي شته؟ تیره ورځ امریکایی د فاع وزیر اشتون کارتر په ناڅاپي سفر تر بګرامه ورسید نه ولسمشر نه اجرایه رئیس او نه بل کوم چارواکی خبر ؤ. خو بالمقابل دوهم جمهور ریس داکتر عبدالله بیا امریکایی سفارت ته د هغوی د استقلال دورځې په مناسبت مبارکي ته ورغلی ؤ آیا لا هم غبرګ ولسمشران د امریکایانو تر سیطرې لاندې دي که وي نو پدې مانا چې منتخب ولسمشر اوباما دی؟ او کنه وي نو ولسمشر داسې وي چې د دفاع د وزیر په راتګ هم نه وي خبر؟

# پښه یان او په اړه یې معلومات

حقمل ضیا

پښه یان د هیواد د پخوانیو اریایي نژاده اوسیدونکو له جملې څخه دي چې له پخواني بلخهله کډوالۍ وروسته د هندکوش د غره په جنوبي شنو لمنو کېښې هستوګنه غوره کړه چې اکثره یې اوس هم په همدې سیمو کې میشت دي.

## جغرافیوي ژوند

د پښه یانو د هستوګنې مرکزي سیمې د کنړ ولایت د پیچ له درې پیل تر کاپیسا ولایته رسېږي.

که په مشخص ډول ووایو نو د پښه یانو اکثریت نفوس د کنړ ولایت د نورګل او پیچ په ولسوالیو او د دیوه ګل په دره کې، د جلال اباد د ښار په ګډون د ننګرهار ولایت په دره نور، خیوې او بهسود په ولسوالیو کې، د محترلام ښار په ګډون د لغمان ولایت په النګار، علیشنګ، دولت شاه او قرغیو په ولسوالیو کې، د نورستان ولایت د نورګرام، دواب او واما په ولسوالیو کې، د کاپیسا ولایت د کوهبند، اله سای، تګاب، نجراب او کوهستان په ولسوالیو کې، د پلازمینې کابل په ګډون د دې ولایت د سروبی ولسوالۍ په ازبین او د پغمان ولسوالۍ په پښه یې دره کې هستوګنه لري.

همدارنګه په خواره واره ډول د غزني ولایت په مالستان او جاغوري ولسوالیو کې، د خاص ارزګان په پیبک کې، د خوست ولایت په ځینو ولسوالیو کې، د بغلان ولایت په اندراب او مرکزي بغلان ولسوالیو کې، د بدخشان په شهر بزرګ او کشم ولسوالیو کې، د تخار ولایت په نار چمن ناحیه کې، او همداشان د هیواد په نورو سیمو کې د هیواد له نور قومونو سره یوځای د ورور ګلوی په فضا خپل ژوند تېروي.

## نفوس

د هیواد د نورو وګړو پشان د پښه یانو د نفوس دقیق ارقام نه دي موجود؛ خو ځینو مورخینو شپږ سوه زره تنه اټکل کړی دی، خو ځیني نور بیا وایي چې د پښه یانو نفوس له یو میلیون اوړي؛ او استدلال کوي چې په ځینو احصایو کې د پښه یانو نفوس ځکه کم ښودل کېږي چې د هیواد په ډېرو سمو کې پښه یان د هیواد له نورو قومونو سره دومره ګډ ژوند لري چې په اسنادو کې په پښتو او تاجکانو باندې حساب شوي دي.

## وجه تسمیه

پښه یي کلمه په اوښتي شکل یوه ډېره پخوانۍ کلمه ده چې تاریخي قدامت یې د پوهانو په وینا له نن څخه دوه زره کاله پخوانۍ زمانې پورې رسیږي؛ پښه یي کلمه په مختلفو وختونو کې د بهاشه، پیشاچی، پشاوی، پشایي او پښه یي په شکلونو اوښتې دی.

د پښه یي ژبې د پورتني اشکالو ته په کتو دا مشکله ده چې د وجه تسمیه په اړه دقیق څه وویل شي خو بیا هم ځنې توجهات شوي دي.

*پښه یي له پشاڅه اخستل شوی دی چې دیو او غوښه خوړونکي ته ویل کېږي د جسیم اوقوي په مفهوم.

*پښه یي له پشی اخستل شوی دی چې په همدې ژبه کې دیوال ته ویل کېږي د قوي او محکم په مفهوم.

*ځنې وایي چې ډېر پخوا په دې قوم کې یو بادشاه تیر شوی وو چې وروسته یې قوم د پاشا یعنې بادشاه کله کلیمې مسما شو.

*پښه یي د بهاشه له کلیمې اخستل شوی دی چې په پښه یی کې لفظ ته ویل کېږي.

## لهجې

پښه یي ژبه د بلې هرې ژبې په څېر لهجوي توپیرونه لري چې د دې ژبې د ویونکو لپاره د په همدې ژبې د منظم تعلیمي نصاب نه شتون دغه توپیرونه لا زیات ژور کړي دي او ورځ تر بلې لا زیات ژور کېږي.

که څه هم پښه یي ژبه ظاهرا د دوه لویو لهجو درلودونکې ښکاري چې لومړۍ لهجه یې د النګار د سند ختیځ طرف ته د لغمان، ننګرهار او کنړ د ولایتونو په اوسېدونکو او دوهمه لهجه یې هم د النګار دسند لویدیځ طرف ته د لغمان، نورستان، کاپیسا او کابل ولایتونو اوسېدونکو کې مروجه ده؛ خو د پښه یي ژبې ځني ماهرین بیا یو بل تقسیم هم لري، دوی پښه یي په ۴ لهجو ویشي.

۱ : شمال غربي لهجه (شتل او ګلبهار)

۲ : د درې او ازبین لهجه ( غرب لغمان، علیشنګ او نورستان)

۳ : لهجه تګاب او نجراب(تګاب او نجراب)

۴ :لهجه لغمان و دره نور(النګار، دره نور و دره پیچ)

## لیک دود

په پشه یي کې هم د پښتو او دري په څېر د څو اضافي غږونو پرته د عربي ژبې له الفباوو څخه استفاده کېږي او دې چارې د دې ژبې د زده کوونکو لپاره لویه اسانتیا رامنځ ته کړې دی؛ ځکه چې له یوې خوا خلک له عربي الفباوو سره معمولا اشنا دي او له بل لوري د پشه یي ژبې د هغو غږونو په تشخیص کې چې له عربی او یا هم له پښتو او دري سره مشترک دي اسانتیا رامنځ ته کړې ده.

پشه یي په لاندې ۴۷ الفبا تورو سره لیکل کېږي.

{آ أ ا ب پ ت ټ ث ج چ ځ څ ح خ د ډ ذ ر ړ ز ژ س ش ښ ص ض ط ظ ع غ ف ق ک ګ ل لهـــ م ن ڼ و هـــ ی ي ې وّ ( وو) یّ (یی) .}

**دود او دستور:** پشه یان هم د نورو قومونو په څېر ګڼ دودونه او رواجونه لري چې په دوی کې ښه او خراب رواجونه دواړه شامل دي همدارنګه ځنې دودونه داسې دي چې د هیواد د نورو خلکو سر ه مشترک دي خو ځنې نور بیا داسې دودونه هم شته چې په نورو قومونو کې نه موندل کېږي.

موږ دلته د مثال په شکل د پشه یانو د ځینو مثبتو دودونو یادونه کوو.

*د همکاری روحیه: په پشه یانو کې په خپل منځ د همکارۍ روحیه ډېره قوي ده دوی له یو بله سره پرته له دې نه چې را وبلل شي په هر قسم کارونو کې همکاري کوي.

همدارنګه دوی د کورونو په جوړولو، د ځمکې د حاصلاتو د راټولو او همدرنګه نورو درنو کارو نور لپاره د ځوانانو حشرونه را غواړي چې ځوانان او غوښتل شوي خلک هم په خوښۍ سره په کې شمولیت کوي او تر هغې خپل همکارۍ ته دوام ورکوي تر څو چې کار بشپړ پای ته نه وي رسیدلی.

***د صلحې جرګې:** په پشه یي میشتو سیمو په هر کلي کې د مشرانو داسې کمیټې وي چې د خپل سیمې او محل مشکلات او د خلکو ترمنځ لانجې د صلحې په واسطه د طرفینو په خوښه حلوي؛ د دې کمیټو په اعضاوو کې علمای کرام او د سیمې مخور سپین ګیري شامل وي دوی د صلحې لپاره له هیڅ چا، هیڅ قسم اجرت نه اخلي او خلک یې هم خبره ښه په اخلاص سره مني.

*میلمه پالنه:د میلمه پالنې په برخه کې پشه یان ډېر زیات میلمه دوسته خلک دي دوی د هر میلمه چې پېژني یې او که نه یې پېژني میلمستیا کوي او په هر حال کوښښ کوي چې خپل میلمه خوښ و ساتي.

***په وعدې وفا:** د پشه یانو اکثره خلک په خپلو وعدو باندې ډېر ټینګ وي او د یو مسلمان په حیث هم له خپلې وعدې مخالفت نه کوي.

دوی چې له چا سره په یوه خبره وعده وکي نو د وعدې د پوره کولو په لاره کې بیا له هیڅ قسم قربانۍ ډډه نه کوي اګر که دوی ته په هر قیمت تمام شي.

***خپلوي پالنه:** په پشه یانو کې خپلوي په ډېر قوت سره پالل کېږي؛ د خپلوی پاللو دود په پشه یانو کې دومره قوي دی چې خپله خپلوي نسل په نسل پالي؛ که چېر ته د یوې خپلوی اصلي افراد او د هغوي پچې که و فات شوي هم وي خو د هغوي نوسي، کړوسي او د کړوسو بچې هم هغه خپله خپلوي نه هیروي او د جانب مقابل له نسلونو سره خپله خواه خوګې ژوندی ساتي.

همدارنګه د زوم او خسرګنۍ ترمنځ اړیکې هم ډېرې زیاتې نږدې وي حتی تر دې چې د خسر ګنۍ کورنۍ زوم خپل زوی ګڼي په هر قسم خیر او شر کې هغه خپل ځان سره شریکوي او په ډېره درنه سترګه ورته ګوري.

**ورځنۍ کړه وړه:** د پشه یانو اکثره خلک په مال دارۍ او کرکیلې مصروفه دي؛ دوی اکثره په شنو او سر سبزو درو کې اوسي او په همدې درو کې د خپل مالدارۍ او د خپل کرکیلې کارونه تر سره کوي.

همدارنګه د پشه یانو ځینې ځوانان د دیني او عصري علومو په زده کړو مصروف وي او ځینې نور بیا د خپلو کورنیو لپاره د حلال رزق د ګټلو لپاره تعمیراتي کارونه تر سره کوي؛ همدا شان ګڼ ځوانان یې د کارموندنې په موخه ځینو ګاونډیو هیوادونو ته هم سفرونه کوي.

**جهادي بهیر:** پشه یان د هیواد تریالو وګړو د یو جز په حیث د خپلې قربانۍ ځانګړې تاریخ لري.

د هیواد په لنډ ماضي کې د روسي یرغلګرو او د هغوی د کونستي اجنټانو په وړاندې د شوي جهادي مبارزې کې خورا زیات قربانۍ ورکړي دي چې د هیواد جهاد پاله ولس یې شاهد دی.

له امریکا او صلیبي یرغلګرو په وړاندې په روانه مبارزه کې هم پشه یان له چانه شاته نه دي او ډېرې قربانۍ یې ورکړي دي؛ او اوس هم د دې قوم د مجاهدو شازلمو جهادي سنګرونه ګرم دي او د اسلامي امارت د شرعي بیرغ تر چتر لاندې خپلې مبارزې ته ادامه ورکوي.

# هم مې ووژني په خپله،

## هم پر ما باندې ژړا کا

ز ـ افغان

د افغاني داعش د پروژې طراح او پلي کوونکی حنيف اتمر ننګرهار ته ورغلی او چې له خلکو سره په غم کې ځان شريک وښيي او د حکومت له اړخه ورسره د مرستو ژمنه وکړي. نوموړي د ننګرهار خلکو ته وويل چې حکومت يې تر څنګ ولاړ دی، سوځېدلي کورونه به يې بيا ورغوي او دوی به د داعش پر ضد تقويه کړي.

د ننګرهار د کوټ خلکو حنيف اتمر ته غوږ نيولی و، ورته کتل يې، له هغه يې اورېدل. خلکو ته خپل قاتل مخامخ ولاړ و، خلک مجبور وو چې غوږ ورته ونيسي، خبرې يې واوري او څه ورته ونه وايي. حنيف اتمر په افغانستان کې د داعش په نوم د يوې وحشي دلې طراح او عملي کوونکی بلل کيږي. ويل کيږي چې د حنيف اتمر دنده ده چې د امريکا دا پروژه عملي کړي او له همدې امله يې تل د داعش سره په پټه مرسته کړې ده. د ولسي جرګې لومړي مرستيال حاجي ظاهر قدير نه يوازې دا چې پر اتمر د داعش د ملاتړ تور ولګاوه، بلکې ويې ويل چې اسناد هم لري او که څوک ترې وغواړي، نو دغه اسناد به ورته وښيي. يوازې ظاهر قدير نه، بلکې ځينې نور سياستوالو، د ننګرهار خلکو او ان د روسيې چارواکو او رسنيو دا خبره وکړه چې حنيف اتمر او معصوم ستانکزی د داعش پروژه پر مخ وړي او د امريکا له اړخه يې دا دنده اخيستې ده.

داعش په کوټ کې وحشت وکړ، د خلکو په کورونو يې اور بل کړ، ماشومان يې ووژل، ښځې يې له ځان سره بوتلې او حکومتي ځواکونو ورته کتل. وروسته د عملياتو خبره وشوه، خو دا عمليات د تل په څېر نمايشي وو او کله هم د داعش پر ضد رېښتيني عمليات نشي کنل کيدای.

حنيف اتمر چې د داعش پر مټ يې په ننګرهار کې کوم وحشت وکړ، بيا ننګرهار ته ولاړ چې د خلکو پر زخمونو مالګې ودوروي، د سلګونو امنيتي ځواکونو او جګو ديوالونو تر شا يې خلکو ته خبرې وکړې، خو داسې چې يوازې خلکو اورېدلی شوی او د خلکو رېښتينو استازو او دردېدلو کسان د خبرو او نظر حق نه درلود. خلکو حنيف اتمر ته يوازې کتل او ښايي د شاعر دا بيت ور په ياد شوی وي چې:

هم مې ووژني په خپله هم پر ما باندې ژړا کا...

## جنت د لس (10) ډوله خلکو لپاره انتظار کوي

١. هغه کس، چې د شپې پاڅېږي او دوه رکعته تهجد لمونځ وکړي.
٢. هغه کس، چې په ګرمۍ کې روژه نيسي.
٣. هغه کس، چې له امام سره په اول تکبير کې ځان شريکوي.
۴. هغه کس، چې د الله تعالی د عبادت کولو له امله لړزېږي کيږي.
۵. هغه کس، چې همېشه رېښتيا خبرې کوي.
٦. هغه کس، چې نشه يي توکي نه استعمالوي.
٧. هغه کس، چې همېشه په اودس کې ګرځي.
٨. هغه کس، چې هر وخت په نبی کريم صلی الله عليه وسلم باندې درود وايي.
٩. هغه کس، چې له خپلې کورنۍ سره په شفقت او خوشحالۍ سره ژوند تېروي.
١٠. هغه کس، چې وږي ته ډوډۍ، تږي ته اوبه او بربنډ ته کالي ورکوي.

# د دوی دنده نفرت خپرول دي

په کابل کې له رسنیو د وحشت، نفرت او جګړې پیغامونه خپرېږي. پر تلویزون داسې وحشتناک تصویرونه خپرېږي چې لیدل یې زړه بوږنوونکي دي. راډیو ګانې وسله والو مخالفینو ته سپک او لوېدلي کلمات کاروي. دا رسنیو عادي خپرونې نه، بلکې په اصطلاح سوداګریز اعلانونه دي. دا سوداګریز اعلانونه په افغانستان کې د پرتو امریکايي ځواکونو له خوا جوړېږي او بیا هغو رسنیو ته ورکول کېږي چې امریکایان یې د پیاوړي کولو هڅه کوي. امریکایي ځواکونه په دې اعلانونو سره له یوې خوا د جګړې، وژنې، وحشت او نفرت پیغامونه خپروي او له بل لوري خپلې مزدورې رسنۍ له اقتصادي اړخه پیاوړې کوي.

دا پیغامونه افغانانو ته له سره پردي دي او د اعلان له لیدو او یا اوریدو سره خلک پوهېږي چې دا پردي الفاظ، پردي فکرونه او پردي نظریات دي، ځکه چې افغانان او د هغوی ارزښتونه له دغه ډول الفاظو سره نه جوړېږي. امریکایي ځواکونه یوازې عملي وحشت نه کوي، بلکې په تبلیغاتي برخه کې یې هم دنده دا ده چې په خلکو کې وېره، وحشت او نفرت خپور کړي. ددغو اعلانونه موخه یوازې او یوازې دا ده چې په خلکو کې وحشت او نفرت زیات کړي. رسنۍ هم د څو پیسو لپاره له ټولو پولو تیرېږي او ددې وحشت او نفرت په خپرولو کې له امریکايي ځواکونو سره مرسته کوي.

امریکايي ځواکونه په دې پیغامونو سره غواړي یو افغان بل افغان ته وحشي او قاتل معرفي کړي. دوی غواړي یو مسلمان بل مسلمان ورور ته وحشي او قاتل معرفي کړي. دوی فکر کوي چې به دې ډول به د افغان مسلمانانو په منځ کې وحشت او نفرت زیات کړي، دوی به په خپلمنځي جګړه کې لا زیات بوخت کړي. امریکا غواړي چې یو مسلمان پر بل مسلمان د امریکايي پیغامونو پر بنسټ قضاوت وکړي او په دې ډول د دوی ترمنځ د نفرت دیوالونه ودروي او د یو ځای کېدو مخه یې ونیسي.

خو خلک درک کوي چې دا پیغامونه، په اصطلاح سوداګریز پیغامونه، دا خبرې، دا الفاظ او دا فکر هر څه پردي دي. خلک پوهېږي چې څوک یې وروونه دي او څنګه به یې په اړه قضاوت کوي. د امریکايي ځواکونو له نفرت او وحشت ډک پیغامونه پر خپلو وروڼو زموږ د قضاوت او حکم معیار نه شي کیدلی. له همدې امله به دا پیغامونه د افغان مسلمانانو پر ذهن، فکر او قضاوت اغېز ونه کړي، بلکې لا به پوه شي چې زموږ د دښمنانو په زړونو کې څومره دسیسې دي او څومره هڅه کوي چې زموږ په منځ کې دبېلوالي دیوالونه ودروي.

## د غرمې خوب ذهن او صحت ته ډېر ګټور دی

ایا تاسې د غرمې د خوب عادت لرئ، که لرئ یې نو بختور یئ او که د غرمې خوب نه کوئ، نو کېدای شي په خپل ژوند کې له ګڼو طبي ګواښونو سره مخ شئ.

نوې طبي څېړنې وایي، چې هره ورځ د غرمې پر مهال له پنځلس دقیقو تر نیم ساعت خوب د ذهني بیدارۍ، د حافظې قوت، د دماغو فعالیت زیاتولو تر څنګ د انسان طبیعت خوش او خندان ساتي.

څېړنه کې ویل شوي، چې د غرمې لږ خوب د انسان پر دماغو پام وړ مثبت اغېز لري.

د څېړنې له مخې د غرمې خوب یا قیلوله د ذهن لپاره له دې امله ګټور وي، چې دغه خوب د ذهن د ارامتیا او تسکین درمل بلل کېږي.

د ډاکټرانو په وینا که څوک د غرمې خوب یا قیلوله خپل عادت وګرځوي، نو دې سره به یې ذهن ډېر قوي او غښتلی وي، کولای شي، چې معلومات په سمه او اسانه توګه حفظ کړي او حافظه به یې تر ډېره قوي وي.

دلته یوه خبره مهمه ده، هغه دا، چې د غرمې خوب یا قیلوله باید له نیم ساعت زیاته نه وي؛ ځکه که د غرمې خوب له نیم ساعت زیات شي، نو بیا یې د ګټې پر ځای زیان زیات دی.

طبي څېړونکي دا هم وایي، چې د غرمې خوب د ذهن تر څنګ بدن لپاره هم ډېر ګټور دی، په ځانګړې توګه د لوړ فشار او د زړه د حملې مخنیوي کې تر ډېره مرسته کولای شي.

دا څېړنه د اروپا د زړه د ناروغیو د څېړنې په اړه کلني کنفرانس کې وړاندې شوې ده

عبد الفتاح (سالارزی)




# د خانانو ښار؛ د اندام پلورنې مرکز!

د خلورو اولادونو مور «ام حسین» د بغداد په ختیځ کې په موقت ډول په یوه کرایه کور کې اوسېږي چې یوه خونه لري. د ام حسین مېړه «علي» د شکرې او زړه په ناروغیو اخته دی او له کاره لوېدلی. ام حسین وایي: «له تېرو نهو کالو راهیسې مې د خلکو په کورنو کې د خادمې په توګه کار کاوه چې بچیانو او ناروغ مېړه ته مې نفقه پیدا کړم او د کور کرایه خلاصه کړم. خو زه نوره ستړې شوې یم او کار نه شم کولای. د نورو عراقیانو په څېر له بې وزلۍ کړېږو. د کور د کرایې، درملو او خوړو د رانیولو لپاره پیسې نه لرو».

علي وایي: « نه مو خوښېده چې د خوړو لپاره چاته د خیرات لاس اوږد کړو، نو خپل نهه کلن زوی مو وګماره چې د خلکو د خوړو پاتې شونې راټول کړي چې ویې خورو. د ژوندي پاتې کېدو لپاره مو د خلکو احسان نه خوښېده. نو تکل مو وکړ چې د خپل بدن یو – یو بډوډی وپلورو چې له بې وزلۍ پرې ځان خلاص کړو، د کور کرایه ورکړو او په خپلو پیسو خواړه رانیسو».

نوموړي زیاتوي:«خو کله چې په بغداد کې د انساني غړو د پېرنې او قاچاق ناقانونه مرکز ته ولاړو، له معایناتو وروسته یې راته وویل چې ستاسو د بدن غړي سالم نه دي، ځکه یې نه شو پېرلای. نو تکل مو وکړ چې د خپل نهه کلن زوی بډوډی وپلورو».

ام حسین او علي یوازیني عراقي مور او پلار نه دي چې له داسې برخلیک سره مخ دي. په بغداد کې اوس د بې وزلۍ له کبله د بدن د غړو پېر او پلور په ستر کاروبار بدل شوی. دغه ښار اوس په منځني ختیځ کې د بدن د غړو د پېر او پلور په نا قانونه سوداګریز مرکز بدل شوی. د نړیوال بانک د سروې له مخې ۲۲.۵ سلنه عراقیان له سختې بې وزلۍ سره مخ دي چې زیاتره یې د ژوندي پاتې کېدو په هیله د بدن غړي پلوري.

بغداد د خانانو ښار و؛ هغه ښار چې د علم او تمدن زانګو بلل کېده. ښکلو قصرونو یې په نړۍ کې ساری نه درلود. خلک یې د نړۍ متمدن، سرشار، نیازبین او شتمن خلک وو. د علم او هنر زده کړې، پیسو ګټلو، امن اخستلو او ښه ژوند کولو په موخه د نړۍ د مختلفو سیمو خلک بغداد ته راتلل. په بغداد کې هر څه وو، پرمختګ و، علم وو، امنیت و او دمعیشت هره اسانتیا موجوده وه.

دا ټول څه ځکه وو چې هلته دمسلمانانو دولت و، یو قوي نظام و چې خپل رعیت یې له هر راز نیکبختیو برخمن کړی و. مسلمانانو حاکم درلود چې د اسلامي خاورې مالونه یې د مسلمانانو مال باله او د خپل عیش او عشرت استفاده یې ترې نه کوله.

خو اوس بغداد، دمشق، حلب، کابل... هغه ښارونه نه دي چې خلک یې په آرامۍ کې ژوند وکړي. د دې ښارو اوسېدونکي اوس بې وزله او مظلوم دي. یتیم کوچنیان او بې وزله کونډې اوس په دې ښارونو کې له نورو خیرات غواړي او آن د خپل بدن ټوټې پلوري.

ستونزه دا نه ده چې دوی مال نه لري. د دوی خاوره د نړۍ تر ټولو شتمنه خاوره ده. یوازې د سعودي عربستان مالي سرچینې که د مسلمانانو د چارو لپاره مصرف شي، نو په اسلامي خاوره کې به کوم څوک بې وزله پاتې نه شي.

ستونزه دا ده چې مسلمانان اوس هغه دولت نه لري چې دوی ته یې د نړۍ د تر ټولو غوره قوم په توګه د ژوند کولو زمینه برابره کړې وه. د دې خاورې حکام اوس کفر ته په خدمت کولو کې یو له بل سره سیالي کوي. خپل رعیت په لوږه او فقر کې ساتي او مالونه یې کفارو ته په ډالۍ کې ورکوي. تر څو له دوی څخه د دوی باداران راضي وي او د واک عمر یې اوږد شي.

# د امیر المؤمنین

## اختریز پیغام څه جوتوي؟



لیکنه ـ بدر منصور

امیـر المـؤمین شـیخ الحـدیث هبـة الله اخندزاده د نن عصر ابوبکر او عمـر دی، د ده رالېږل شوی پیغام لوستل او عمـلي کـول پـر مؤمنانو لازم دي، ځکه د مسلمانانو د امیرانـو هره یوه کلمة د نورو خلکو تر یو کتاب خـبرو اهمّیت او فایده لري. دا د هغه چـا پیغـام دی چې په نن عصر کې یعني په هغه زمانـه کـې چې دین سـکروټه گرځېـدلی دی، د مؤمنـانو امیر دی، د دین د نفاذ لپاره ځان قرباني کوي او د الله (ج) ټولـو لویـــــو او ورو دښمنانو ته په غېږ ورغلی دی.

دا پیغام ډېر هغه شکونه زائلوي چې د افغانانو پـه ذهنونـــو کـــې د غربي میډیا له خوا پیچکاري شوي دي، غمځپلو مؤمنانو ته تسلي ورکوي چې که امیران له منځه تللي خو دیـن له منځه نه دی تللی، او الله (ج) مؤمنـانو تـه نور هماغسي امیران ورکړي دي چې دین تـه وینه ورکړي.

دا پیغام د مؤمنانو تـر مـنځ د اتفـاق، اتحاد، ترحم او ورور گلوۍ اظهار کوي، او د صلیبیانو او د هغوی د مزدورانو هغه تبلیغات دروغ ثابتوي چې وايي د مسلمانانو تـر مـنځ اختلافات او بې اعتمادي شته، او دوی به موږ ته د تسلیمۍ پرته ښه راتلونکی ونه لري.

دا پیغام مؤمنو زړونو تـه د خپلـواکۍ، سوکالۍ، آزادۍ او یوې ښې راتلـونکي الهـام ورکوي، او هغه نا امیدي له منځه وړي چې د اجیرو رسنیو له خوا شپه او ورځ تبلیغیږي.

دا پیغام هیوادوالو ته ډاډ ورکـوي چـې اســلامي امــارت د خپــل هیــواد او ولــس خواخوږی دی د خپلو وینو په بیه به د هیواد، ولس او تأسیساتو ساتنه کوي.

دا پیغام جوتوي چې اسلامي امارت لکه څنگه چې د غربي میـډیا لـه خـوا تبلیغیـږي یوازي د جگړې شـوقي نـه دی، بلکـه سـالم تفاهم او حل لوري ته هم ژمن دی، خو دا چې اوس جگـړه پـر مـخ وړي دا د عـدالت پـه غوښتنه، او بل دا چې د جگړې مقابـل لـوری سالم تفاهم نه پیژني.



## په نبوي حرم کې دبرید له امله د اسلامي امارت دخواشینی پیغام

په ډیره خواشینی سره مو خبر تر لاسه کړ چې په نبوي حرم کې دروضې مبارکې په ساتونکو باندې برید شوی او مرگ ژوبله یې اړولې ده.

اسلامي امارت چې په دې ځورونکې پیښه یـې تکـان خوړلی یـاده پیښـه پـه سـختو ټکـو غنـدي، او د اسـلامي شعائرو په وړاندې یي له دښمنۍ او کینې ډک عمل بولي.په نبوي حرم کې داسې کړنه په هیڅ ډول د زغملـو نـه ده .

حرمین شریفین د نړۍ د ټولو مسلمانانو گډ ارزښت دی چې په وړاندې یې هیڅ ډول ناوړه اقدام توجیه او تحمل کیدلای نشي. دې جنایت اوښوده چې د اسلامي امت او زموږ ددیني شعائرو په وړاندې ددښمنانو دسیسـې څومره بې رحمه او له کینې ډکې دي چې مسلمانان یې باید په گډه په وړاندې فکري او عملي مبارزه وکړي.

موږ دعا کوو چې الله تعالی دې د حرمینو شریفینو حفاظـت وکـړي، هرهغـه څـوک او کـړی چـې د مسـلمانانو ددې مشترک ارزښت په وړاندې دا ډول شومې ارادې لري، الله تعالی دې انتقام ترې واخلي، د داسې کړنو ترشا پټـې دسیسې ښکاري، مسلمانان باید ددا ډول توطئو شنډولو ته متوجه ووسي.

د افغانستان اسلامي امارت

۳۰/۹/۱۴۳۷هـ ق

۱۵/۴/۱۳۹۵هـ ش ـ 5/7/2016

# طالب

شاعر: مفتون

د حریت ناوي بختورې په طالب ښایسته دي
ستا اداګانې نغمه ګرې په طالب ښایسته دي

طالب په دین باندې ښایسته، په جهاد ښایسته دی
خو دا د جنګ ګرمې سنګرې په طالب ښایسته دي

سپینې جندې دي، ځای په ځای د تکبیرونو شور دی
د هېواد لوړې او ژورې په طالب ښایسته دي

داسې رنګ بنګ یې غېږ کې پروت وي، لکه سترې زمرې
دا ګړنګونه او کمرې په طالب ښایسته دي

طالب دمه کړې، طالب ورلاندې خوب کړی دی
لمنځې، نښتر، ځېړې، ګورګورې په طالب ښایسته دي

ځواني یې ستایي، جنګ مېړانه شهادت یې ستایي
د پېغلو ساندې او سندرې په طالب ښایسته دي

بدرنګ لښکر بدرنګې نه کړې، د میوند ملالې!
ستا د غیرت د صف ملګرې په طالب ښایسته دي

یو خوا رنګینې جنازې بل خوا د جنګ تیارې
زمونږ د کلي مازدیګرې په طالب ښایسته دي

اول یې مینه کړه را زده، بیا قرباني د وینو
زمونږ د ژوند ټولې اخترې په طالب ښایسته دي

مفتونه دا مې خپل کمال نه دی هنر مې نه دی
زما غزل زما خبرې په طالب ښایسته دي



# Srak Magazine

"داسلامي امارت زعیم أمیرالمؤمنین شیخ الحدیث مولوي هبة الله آخندزاده صاحب حفظه الله :

امریکایي اشغالګرو او د هغو ملګرو ته زموږ پیغام دادی چې افغان مسلمان ولس ستاسو د زور او تزویر له استعمال څخه ویره نه لري. له تاسو سره په مقابله کې شهادت دخپل ژوند تر ټولو لوړ هدف او آرمان بولي، تاسو په افغانستان کې د خپلو عسکرو دوخت په اوږدیدا، یا هغوی ته دجګړیزو واک په زیاتیدا سره نشئ کولای د افغان مجاهد ولس حوصله او جهادي مبارزه ټکنی کړي.

نو د بې ځایه زور آزمویلو پرځای حقایق ومنئ او خپل اشغال ته د پای ټکی کیږدی. ستاسو په مقابل کې زموږ او زموږ دسلفو مبارزه په شعوري ډول په اسلامي اساساتو ولاړه او د آزادی غوښتنې په روحیه پرمخ ځي، دلته ستاسو مقابله له یوه ګروپ یا یوې ډلې سره نه؛ بلکي له یوه ملت سره ده چې هیڅ کله به یې ونه ګټئ (ان شاء الله)